لوی مړی د برخه

# د




# افغانستان

# لغمان - قرغیو




# نن - پرون

لیکونکی : رازمحمد «ویښ»

۱٤۲۱ ق - - ۱۳۷۹ ش

# اهــــداء

د

افغانستان

د

اسلامی انقلاب

د

شهیدانو سپیڅلیو ارواوو

ته

ئی وړاندی کوم



## الـف : د کتـاب د منځپـانـګی فهـرست

١- د ختیځ زون یا دښت

٢ - د لغمان مشر تابه لیکنه او مننه

٣- د ننګرهار اطلاعاتو او کلتور ریاست لیکنه : شیرشاه همدرد په قلم

٤- سرلیک (.........؟)

٥- لغمان او جغرافیائي موقعیت ته یود کتنه

٦- په افغانستان کی د علماء کرام شوراګانو نیته لیک

٧- د لغمان علماء کرام محلي شوراګانو جوړښت ته لنډه کتنه

## ب : د مؤلف د نورو چاپ شویو کتابونو فهرست

| ګڼه | د کتاب نوم | د خپرولو مرکز | د چاپ کال |
|---|---|---|---|
| ١- | پښتو کتابونه | پښتو اکاډمی | ١٣٣٧ |
| ٢- | لرغوني ژوی | // // | ١٣٣٨ |
| ٣- | دجاذبی قوه | // // | ١٣٣٩ |
| ٤- | د پښتو ټولني تاریخچه | // // | ١٣٣٦ |
| ٥- | د لسم ټولګي تاریخ | دمعارف تالیف او ترجمي ریاست | ١٣٤٤ |
| ٦- | د پنځم ټولګي جغرافیه | // // | ١٣٤٦ |
| ٧- | د شپږم ټولګی جغرافیه | // // | ١٣٤٧ |
| ٨- | د لسم ټولګي پښتو فزیک | // // | ١٣٤٨ |
| ٩- | جوان با تو میګویم ؟! | پشاور - پاکستان | ١٣٧٩ |

# د کتـــاب لنـــډه پيـــژنـــدنـــه

ددې کتاب منځپانگه او محتوا د حجـم نه څـو ځله زياته ده. په دې کښې د لغمان په عمومي پيژندنه - قرغيو ولسوالۍ وروستيو: پوهنيزو- ودانيزو- کرکيليزو- لارو، سړکونو، او روغتيائي چټکو بدلونو، په څرنگوالي سربيره. په افغانستان کې، دسلطنت له ړنگيدو ۱۳۵۲/٤/۲٦ نيولي، دافغانستان دگډوډۍ په انگيرنو، د داؤد شاه د رژيم په څرنگوالي، دکمونست رژيم، د لړۍ په پيل اونا خوالو، هيواد ته داسلامي انقلاب دبرى، د ډالۍ له راوړلو، تر نن په ټولو پيښو لنډه، خو بشپړه رڼا اچول شويده.

د لغمان – قرغيو ولسوالي د امارتي
او ولسي شريكو هلو ځلو د وروستيو
چټكو پوهنيزو ، اقتصادي
روغتيايي بدلونونو يادونه اومننه

د

# افغانســـــتـــــان

# اسلامـــی امـــارت

# ختيـــځ زون يـــا دښـــت

کورنی – تپی – قومونه اوملیتونه ، د یو سیاسی ، حقوقی ، خپلواک چاپیریال ، هغه پاخه او بنیادی اجزاء یا عناصر دی ، چې د بقا ، پایښت په خاطر دخودی او فردیت ، د بی نظمه آزادیو په پرېښودو ، د ټولنی په نوم ، یو موټی شوی په مشخص مسیر کې ، تاکلی هدف او مرام تعقیبوی ، چې په انفرادی ، ډول ئی د معیشت برابرښت ، پایښت او په سمه لاره تلل ، دحقیقت نه لـری خبره ، اونا ممکن کار بریښی.

دا د جنس ، یا نوع ، خپل ډول پاله روحیه ، او قدرتی قانون ، نه یوازې په انسانی پرګنو ، بلکی د کایناتو په ټولو ، مافیهاوو کی یو شان نافذ او برقرار دی. دالله (ج) له پاکه ذاته پرته ، هرشی یو په بل ، باندی په تکیه ، یو دبل متمم ، مکمل او مرستندوی دی. په هوا کې د مرغانو سیلونه ، کتارونه لکه: زانې او هیلې ، دځمکی په مخ ، د میږیانو اود شاتو ، د مچیو تنظیمونه ، ددی مدعا ښه بیلګه دد.

د ځمکی په مخ ، دا زمونږ شا او خوا ، چی ځومرد غرونه ، سیندونه او دریابونه لیدل کیږی ، ټول د بیلو بیلو اجزاو ، مرکبات ، دراز راز اجناسو د وحدت او یووالی مجموعی دی . چـــی د اتحاد دځـــواک ، په مینـــه اوشوق ، د ژوند او پایښت پړاو وهی.

شمسي نظام او له هغه سره د نوري اجسامو يووالی ، او ملګرتيا هم د غسې وګڼه.
دا غرونه هم الله تعالی ، يوازی له يو د عنصر ، يو د خالص جسم ، يوې ډبرې يا کانې
ندي پيدا کړي. په هغو کې هم د خاورو ، شګو په بلېياردو ، ذرات او نور زيات
عناصر شته ، چې د هغو په مزج او امتزاج ئې ترې د غه څه جوړ کړي ، او د ځمکې په
مخ يې درولي ، چې د اجزاؤ په اتحاد د غسې ټينګ ، او هسک ولاړ دي.

**خو کوم جوش ، خروش ، يا فعل او انفعال چې په غرو رغو کې د آتش فشان په نوم يادېږي هغه په اتحاد کې د بېلتون غوښتني لوېه نښه بدل کېږي .**

دا سيندونه او سمندر ، چې نن داسې مست او مغرور ښکاري. الله (ج) ،
د غه راز مست ، او مغرور له آسمانه ، ندي را نازل کړي. بلکې د بقا پايښت
او د انسان د خير له پاره د باران د ګډووډو ، خورو ورو ، څاڅکو تومنه ، ذخيره
نتيجه او مجموعه ده ، چې بهيږي او خلک با عالم ترې ګټه اخلي.
دا د غرو رغو په سر او د ځمکې په مخ چې ، ګر ، ګر ځنګلونه ليدل کيږي .
دا **الله تعالی بود مر او** سملاسي ندي پيدا کړي. او له پيله داسې نه و.
بلکې د تدريج د فلسفې له مخې ، د يو شمير بوټو ، نيالګيو د قدرتي راټوکيدو ،
زرغونيدو ، کرار ، کرار ، ورو ورو ، يو د بل په خوا کې د لوئيدو ، زياتيدو ، له يو د
حال په بل حال ، د بدليدو په لړکې ځنګل شوي ، چې د اتحاد او يو والي په برکت
**ستل** شنه او تازه ښکاري.

دا د ځمکې د مخ د نګې ، د نګې ، هسکې ، هسکې ، څو پوړيزه ماڼۍ ، چې
نن سبا د لوړتيا په نشه ، سر هوا ، سرهوا ګوري ، دا د خاورو د بې شميره ذراتو

مجموعی دی، چی یووخت وچه خاورد ،بیا خښتی ،وروسته دهنر لاس خوا په خوا ایښی ،اوسر په سریی درولی ،او په پای کی یی داسی ښکلی مانۍ ترې جوړې کړی. چی په ټولو کی دخپل جنس، یا ډول پالنی روحیه، بقا، پایښت او د یو راز قربانۍ مقصد، نغښتي ښکاري. اودخودۍ اوفردیت، له آزادیو د متجانسو عناصرو په ګټه تیریدل یی، ستر عامل دی.

داسلام سپیڅلی دین هم، له هرڅه دمخه د مسلمانانو تر منځ، د وحدت او یووالي، په ټینګښت تاکید کوی، او د انسانی مؤمن نظام ژوند اوژواک، په دغه اصل پوري تړلی ګڼی.

طیبه کلمه ،لمونځ ،روژه، زکوة اوحج هم، د دغه اصل متمم، او د انسانیت د تکامل اصول، د مومن د فکر او عقیدی د ټینګښت، اوسپیڅلی هدف، په لوری د تګ او یون عامل بولی.

اسلام د مومن خیر ، ښیګړه، د دبن رسی ته، په شریکه سرد، لاس غزولو، او ټینګه نیولو کی ګوری، چی اجریی په دنیا کی رحمت «نیکمرغی ، سوکالی، سالم ځواک »او په اخرت کی مغفرت : « د دنیا له ازمیښته په بری تیریدل، او دالله تعالی رضاء حاصلول »دی. که د نړی تیر نیته لیک ته ،په ځیر وکتل شی، جوتیږی، هر هغه امت چی په دغسی الهی رسی، د وحدت منګلی خښې کړی، ټینګه یی نیولی ، بریالی شوی. اخرت ته مخ رونبی تللی ،او له ویاړه ډک تل پاتی نیته لیک یی پرې ایښی. خو چا چی دغه رسی نده نیولی، یا یی خوشی کړې، بیلاری ،او خسر الدنیا والاخره شوی دی.

دغه وجه ده چې ،د افغان خپلواک ولس ، په جهاد پاله روحیه ویاړو،

ستایوېي، او درناوي ئي کوو . چي د دغسي الهي رسۍ په ټینګولو يي ،کفري تیریو ته ، تل له شرمه ډکي ماتي ورکړي ، او ملک يي له کفري ناولتیا ژغورلی دی د ساري په توګه :

لغمان ولایت ، د افغان خپلواک مومن ژواک هغه مړني جهاد پاله کتله دد چي هم يي د شوروي الحاد ، په وړاندی جهاد کی ، د شجاعت ونډه روښانه ،او هم يي په تنظیمي جریانو، کی د خیر پالني ، امن غوښتني روحیه ښکاره دد . هم يي د طالبانو د اسلامي تحریک دراتلو ، په هر ګللي کی جرأت ،او جسارت څرګند دی . چي دا د دې مومنې ،توکړی ایماندارو ورونو ، په سلیمه پوهه ، او پوره ایمانداری ، دلالت کوی .

موږ ته د امارت د دی درې ، څلورکلو ، په اسلامي پلوشو کی ، دا په ډاګه شوی ، چې د افغانستان لغمان سیمی ، جهاد پال مومن ورونه ، په رښتیا هم زیارکښ ،د ښه استعداد ، سالمي پوهی ، د قدرتی مناسب اقلیم زوکړد ،اود سمي پالني وړ دی .

هو ! ختیځ مشرتابه ،لغمان او قرغیوسیمه ، د اسلامي امارت طلیعی ، په لومړی وخت ،هم لیدلی ، او بیا بیا يي هم ، چې د ځینو وظیفوی چارو ، په ترڅ کی ، هغه لورته ،د سفر زمینه برابره شوی لیدلی ، خوهر ځل يي چی د څومیاشتو په فاصله کی ، د غه سیمه لیدلی ، په زړه پوری اصلاحی بدلونونه يي په کی تر ستر ګو شوی ، په تیره د قرغیوولسوالي ودانی ، او امارتی سرکونه ، دومره وران ویجاړو ، چي ولسوالي نه معلومیده ، او ګمان نکیده ، دلته به هم ، کله ودانی وه او که نه ؟ عام سرکونه هم دومره د تلو راتلو وړنه ، او کلیوال سرکونه خو بیخي نه و .

مدرسيې هم شاړي ګډې وډې وې ، اوروغتيا ساتنى او پالنى بندوبس هم نه و.

خو لكه څنګه چې وليدل شو . دسيمې دجهاد پال ميړني ولس له خوا پخپله خوښه ، دمولوى فضل الله خادم ، ځلمى متشبث او فعال ولسوال ، په امارتي لاربنودنه ، اوشريكه مرسته ، دغه وراني ويجاوى ، ژر تر ژره بيا ودانى ، او دامارت دسيمې مسوول واحد ، استفادې ته چمتوشوى ، سپارل شوى او كمبنتونه هم تر ډيره حده مخ په تكامل دى.

ختيځ زون د دغې ولسوالى د باتورو مومنو ورونړاو امارتي كاركوونكو زيارستايى كوروداني ورته وائي او په دغه لاره كې ورته د زياتو بريو هيله كوى.

ومن الله التوفيق

مولوى صدراعظم دختيځ زون مرستيال

۱٤۲۰/۸/۱۵

## لغمان ولایت دمشرتابه مننه او ستاینه

دامنلی حقیقت دی چې لغمان ولایت خلک په عمومی توگه علم پال ، مجاهد روزونکی دی اود دغه نعمت او فضل اغیزه وه چی د روسی کمونیزم د تیری په وړاندی یی ، په میړانه ټینگار اود ایمان ثرگندونه کړیده ، بلهدا چې د دغه ځای ولس د طالبانو د اسلامی تحریک د راتگ ښه هرکلی کړی اود اسلامی امارت په پلوشو کی یی دلغمان ولایت له اراکینو اومسوولانو سرداوږه په اوږه داسلامی احکامو اومحمدی (ص) شریعت دنفاذ په بهیر کی په زړه پوری برخه اخستی ده ، چه لغمان ولایت مشرتوب یی هم دغه اخلاص مننی اوستائی .

لغمان ولایت د دوی دنورو په زړه پوری ښیگړو په ترڅ کی ، دلغمان قرغیو ولسوالی ، دکمونستانو دوخت دوران ویجاړ مرکز په بیا ودانولو کې د ولسوال ، مولوی فضل الله « خادم » په نوښت ، ددغی سیمی دمومنو ، پتمنو خلکو وړیا مرستو اوسالم فعالیت ته گوته نیسی . چې د روان کال ، د (۸) میاشتو په اوږدو کې یی ، د نه ستړی کیدونکو هلوځلو ، له مخی یوه داسی پخه ،ښکلی او بشپړه ، ودانی رامنځته کړ دچی تر پخوا ډیره غوره اوپه زړه پوری ده ■

مور. ددغي ولسوالي دولس کشرانو او مشرانوته ، ددغه راز اسلامي احساس ، اومیړانی دستاینی ، او کور ودانی ویلو په ترڅ کې ، دمولوی فضل الله « خادم » نوښت ستایو اود تقدیر اولمانځنی وړ یې ګڼو خدای (ج) دی د اسلامي امارت په مسؤولانو کی دغه راز نوښتګر لازیات کړی .

امین یا رب العلمین

مولوی عبدالباری دلغمان ولایت مرستیال

۱۶ / ۸ / ۱۴۲۰ هق

# د دې کتاب په اړه څو خبرې

## چې پرې غم غلطوم درې مې محرم دی

## یو قلم - دویم کتاب ، دریم اشعار خپل

کتاب د لوستو خلکو ډیر ښه ملګری وی دا **کتاب** هم داسی وبوله . د دې **کتاب** منځپانګه کې دلغمان د ښکلې ولایت په اړه کافی معلومات درج شوی . دا **کتاب** تر هر چا زیات د هغه چاله پاره ښه ګټوره ده چی د لغمان ولایت نه یا کوم راپور تاژ جوړوی اویا هم دلغمان ولایت ته نوی سفر کوی به دې **کتاب** کې خپل مطلب یاڅه چی غواړی تر لاسه کولای شی ▪ په دی **کتاب** کی دلغمان ولایت جغرافیایی موقعیت دوګړو شمیر ،پوهنیزه سطحه - دخلکو د پوهی او دیته ورته نور اړخونه تشریح شویدی . که څه هم ددی **کتاب** موخه دقرغیو ولسوالۍ څرګند ونه ده ، خو دلغمان ټول ولایت په کی څیړل شویدی . په دې **کتاب** کی دقرغیو ولسوالی اوسنی حال ښه څرګند شویدی . په رښتیا چی داسلامی امارت له واکمنید و دمخه

دولسوالی حال ډیر خراب و . د ولسوالی ودانی ړنګ وینګ وه . لاری خرابی وی اوسړکونه کنډکپر و . زما ښه یاد دی چی دجهادی شوری په وخت کی دعلما ؤدیو وفد سرد لغمان ته په همدې لاره تللی وم . د لارو په خراب حالت می خوا دیره بده شوه او اوس هم د یو ژورنالست په توګه په دې شاهد یم چی د قرغیو ولسوال ښاغلی مولوی فضل الله خادم دا مشکلات اوستونځی دولس دخلکو سره طرح اود حل په خاطر ئی د شوراګانو په جوړولو اقدام وکړ . موږ ته چی ددې ولسوالی د بیارغونی کوم راپورونه زاغلی یوه مهمه قربانی په کی دا وه چې د ولس خلکو لس زره لکه افغانی دولسوالی دبیارغونی د چارو له پاره مرسته کوله . د ودانی او نورو عام المنفعه تاسیساتو دکار له پیله بیا تر پایه د ژورنالیستیکو راپورونو په واسطه ددی چارو څارن وم کله چې دا ودانی پراسنتل کیدله بیا هم دختیځ زون د تنظیمه ریاست مرستیال محترم الحاج مولوی صدراعظم سره د درونتی له لاری مراسمو ته ولاړم ، لاری سرکونه ډیر ښه جوړ شوی و . اود ولسوالی نوی ودانی هم په پاخه او اساسی ډول جوړه شوی وه خو ملحقات یی لا پاتی و . چی کیدای شی هغه هم اوس بشپړ شوی وی . ماته ددی کار زیات ارزښت په دی کی ښکاری چی په داسی ناسازو اقتصادی شرایطو کی د بیا روغونی چاری په څه ډول پیل شوی او په څومرد ښه انداز کی تر سره شویدی.

دا جوت حقیقت دی چې که په ټولنیز ژوندانه کی د مرستی او همکاریو کړی

همداسې تېنګې او کلکې وي په دغسې نا سازو اقتصادي شرايطو کې هم داسې ستر کارونه تر سره کېداى شي. خو يو محرک غواړي چې دا محرک، د يووالى - وحدت اود خلکو ترمنځ د همکارۍ د ريښې د ټينګولو جوهر او استعداد ولرى څو ټولنيزې اړيکې او همکاري يو تر بله ټينګې کړي شي.

دا **کتاب** نه يوازي دا چې د همدي يو ستر کار بېلګه ده پر معلوماتو يې سربېره لوستونکو ته د مثبتو همکاريو روحيه هم بخښي. زه په داسې حالکې چې د **کتاب** ليکوال او محرک ته د دې **کتاب** د چاپ لا امله مبارکي وايم د دغسې معلوماتي **کتابو** د زياتوالي هيله کوم.

په درنښت

شيرشاه همدرد - جلال آباد
١٤٢١/٢/٢٦ هجري قمري

بسم الله الرحمن الرحیم

# سریزیک

تحول په کاینا توکی لیده شي
ډیر افسوس دی چې یو قوم پاتې ویده شي

په دیارلس کلنی، له نن پنځه شپیته (٦٥) کاله وړاندې د (١٣١٩) کال ژمی په مهال، داسې یو وخت چې بریت مې نه و، تور، نه څلمی وم، نه کمکی، د افغانستان، لغمان ولایت، قرغیو ولسوالی، ابراهیم خیل قوم، د صفوخیلو د کلی، د منډرور مدرسې له لومړنیو زده کړو وروسته قضا و قدر مخ په کابل بوتلم خدای خبر چې څه وشول، هلته د وخت د معارف وزارت د پلټنې د یو مسئول اروابناد ښاغلي عبدالبصیر «بصیر» په لارښوونه د وخت د مطبوعاتو تازه سمسور بڼ ته ورننه شوم. که مې کتل هر څه راته لکه ګل داسې ښکلي او ځان راته په ګل مین بورا ښکاره شو، کله به له زیاتې خوشحالۍ د هوسونو په څپو کې، زړه راته مسکی شو، تش د بڼ د ګلانو د ښکلا بوی او رنګ په مستۍ به مې ځان هاسې دې پلو هاپلو، بوڅ، بوڅ کاوه، کله به د سوچ او خیالونو په نړۍ کې د شوق په نیلي سپور ها خوا دې خوا ځغلیدم. د دې برتې هاغه بوټي په څنګ کې به مې د شنو

شنو بوټو د راز راز ګلانو پټه خوله غوټيو سره چې زما په شان يې دا تنکی ، خولې لا په خندانه وی پرانيستی ، په پټه خوله خواله کول ، خو افسوس چې د ښکلا هاسی تش بازارو ، يود بل په رمز اواشارو نه پوهيدو . يوازی د رنګ اوبوی ، دمينې ننداره وه کله به می ، ذوق ،ليونی مينی سينه د بورا په څير ناخبره د بوټوله تيرو اغزو سره ومښلوله جامی به می څيری او ځان به می اغزن ، سينه او ټټر به می شيوکاری او ژوبل شول .

ماليار چې له ګلانو سره زما د تش رنګ اوبوی نا آشنا ، ليونی مينی ،ننداره کوله . زما لټون اود مقصد ، او هدف لوری لودن نه پيژندلو ، لکه دوصال تږی ، تر وربورا ، اوترو اوترو ټوپونو ،ديته اړيست ، چې په خدمت کی دننه ،روزنی پروګرام له لارې له ګلانو سره ، زما د تفاهم لاره پرانيزی . اود غوټيو د پټوخولو له کيف ،رمز ، د شونډو ، پرانستلو ،خندا ، وروسته دغم داوښکو ، داوبلنو پاڼو له راز او اسرارو سره آشنا کړی .

دالفت صاحب خبره رښتيا هم :

**پوهه هسی ښه ډيوه ده دجهان      چې نه لوګی لری نه سوزی پتنګان**

د ماليار د زړه سوی پټی زما د زړه ملهم شو. ورو ورو د مطبوعاتو بڼ خپله معطره لمن راته پراخه کړه ، د اصيل خواږه بچی په دود يی د : « خپرونو آرشيف ، تحريراتو- اصلاح ورځپاڼی - کابل راډيو ، باختر آژانس افغان اکادمی .

پوهنې وزارت د تعلیمي نصاب د خپرونو د ډ گرپه غولیو د هیواد له : دود ،دستور اوروایاتو (کلتور او ثقافت ) سره آشنا کولو په خاطر وگرزولم .راگرزولم .

د ۱۳۵۲ کال د چنگاښ په (۲٤) د ظاهرشاه د بیرته کیدو ،اود داود شاه درامنځته کیدو سره سم د دولتي لومړی رتبه ماموریت په حساب ، د دیرش کالو خدمت په پای کی کور کینولی شوم .

د (۱۳۵۲) کال د کب میاشتی په (۲۵) نیټه له (۳۰) کلوپیلتون وروسته، پلارنۍ مینې لغمان ته ستون شوم .

که څه د اروپا فیشن ، پسندو اوسوسیالیزم پلو کمونستانو په لمسون زما ژبه اوقلم په معارف اومطبوعاتو کی داجیر په توگه هم له فرهنگی او کلتوری خدمتونو تړل شوی وو.

خوښنگه چې څوک دوطن ، دین ،مسلک او ایمان له مسئولیت ډک زړونه د توتیانو په شان په پنجره کی نشي ساتلی ، دغه راز ما هم خپل زړه ته د ظالم له ویرې پکور کی کوهی نشو کیندلای ،ځکه می په لغمان کی د پلارنۍ ځمکی د کرکیلی په ښنگ کی ، د کورکلی ،جومات او چاپیریال ، ان تول کوز او بر لغمان له علماء کرام سره د مسلک د فرهنگ او اقتصاد داوتروالی ،په تیره د لغمان زړه دردوونکی ښوونیز اومالی اوتروالی په باب خواله پیل کړل :

هو ! لغمان . د ظاهرشاه په تول یو څلویښت کلن سلطنت کی ، یوازی د روښان په

نوم د هلکانو او د مستورې په نوم د نجونو « بې کتاب تون او لابراتوار » تش په نامه ليسې د رلودې او بس . د ظاهرشاه له خلع ( ٤ ) يا ( ٥ ) کاله وړاندې ، هغه هم د ولس د تاوتريخوالې ، سورو فرياد له مخې د قرغيو ليسه په قرغيو ، د شيخ محمد حسين ليسه په الينګار ، او د ميا عبدالکريم ليسه په اليشنګ کې پرانستل شوې . خو د ديني مدرسو او حفاظو نوم هم چا په خوله نشو اخستای. لغمان ولس سره ، د وخت د واکمنو په نادودو او ناخوالو سربيره ، د ظاهرشاه او د هغه د پلار نادرشاه په نيمه پيړۍ سلطنت کې له يوې زړې تاريخ وهلې کنډوالې ، ورک نومې روغتيايي کلنيک پرته ، لږ تر لږه چاد ويني د آزمويني « تيست » يو لابراتوار هم نصب نکړ او نه يې يو مسوول ، تکړه عصري دکتور ورواستاوه. د دغې سيمې خلکو . د نارو غانو په دواد رمل کې له قدرتي بوټو ، د اکسير په توګه کار اخيست او د دوی د واکمنی تر پايه ، د عنعنوي طبابت نه په استفادې ، په قرغيو ولسوالۍ کې حيات الله نومی اداري مامور ، چې په سرکاتب مشهور ، غير مسلکي سړی دی په دغه شلمه پيړۍ کې ، د عصري طبابت پرځای ، د عصري پروفيسور په توګه کار کاوه . همدا راز د لغمان ولايت په مرکز « تلګړو » ښار کې د ملاجمعه ګل په نوم يوه حکيم ستر کلنيک چلاوه او د حافظ د غونډارې « رجماً بالغيب » په توګه ئې هر څه ، د هر مرض د دوا لپاره کارول . د ذکر کيلي اولومړني ضرورت ځامو ، د ودې برخه يا خبره خو په شته مساعدو د ښتو د ګرو کې دومره خواره وه چې د الفت صاحب د غوره اشعارو دغه دوه بيته يې ښه انځوريا تصوير ګڼلای شو :

د وطن په حال که ستا لړ څه نظر وای    یا په تا کې د همت لړ څه اثر وای
داد ګر به اوس په شنوونو سمسور وای    هر سحر به د بلبلو په کې شور وای

دساري په توګه دلته د سیمې پروني تولنیزې بنې ته لنډه کتنه کوو:

## ١ - پروني، کرکیله :

قرغیو ولسوالي چې د لغمان ولایت ګڼ نفوسه سیمه ،په کال کې د څلورو فصلو حاصلخیزه کرونده یې خاوره .اوبلنه ، غنی اوشتمنه برخه ده .د درې تل بهاندوسیندونو «کابل - الیشنګ اوالینګار» په برکت دغه رازد کاڼي - خیرو خیلو سرخکانو - ګمبیرې پراخه دښتو ،اورشو، څرځایو ، په لرلو د سرو زرو توته ده . چې په لره پاملرنه - ډیر لږ لګښت په سوو ایکړه ځمکه خړوبولو ، اوکرکیلې ته تیاریدای او چمتو کیدای شي ، اودغه رازله یوې قرغیي سیمې درې اوله یو د لغمان دوه رامنځته کیدای شو. خو افسوس او ډیر افسوس چې ، د ظاهرشاه اوداود شاه به واکمنیو کې دې مهم ټکي یا حقیقت ته چې د نفوس ورځ تر ورځ زیاتې او د عاید کمښت ، یا له صفر نه هم ټیټدل و ، هیڅ پاملرنه ونشوه ، ځکه خود کفایي په بیره له منځه ولاړه ، او دولس وګړې ، یوازې د ګیډې له اندیښنې ، ژوندې په مړو حساب ، اوله خپلو ځالو بهر مسافر ، او په شاوخوا چم ګاونډ ملکو کې ، هر لوري خواره واره شول.

۲ – ښوونه روزنه : دلغمان ګڼ نفوس له استعداد ډکی پرګنی په تیره بیا د قرغیو ولسوالی سیمی چی دلغمان څه نا څه یوی دریمی برخی خلک په کی اوسیږی د ظاهر شاه د (۴۵) کلنی اوږدی مودې ، واکمنی تر وروستو ( ٤ ) کلو په قرغیو کی یوه لیسه هم ندرلوده ، په داسی حال کی ، چې ددې سیمی د ولس د نر او ښځو شمیر ( ۸۰۰۰۰ ) تنو ته رسیده ، او ګڼ کلی ، له دری تر ۵۰۰ ، سوه روزنی وړ بچیانو په ، درلودلو ، دیو نسکو د مقرراتو ، او مدرسو ته د ولس پخپله خوښه ، د ځمکود وړیا ورکولو او جوړولو د کار په غاړه اخستو له مخی ، هر ګڼ کلی د یوې عصری اوبلی دینی مدرسی ، جوړولو وړ وه ـ چی که دوخت واکمنو ، پدغه برخه کی ، دغه اصل ته په پاملرنه ، دولس له غوښتنو سره سم ، عمل کړی وای ـ باوردی چی نن به ددغه کار په برکت د قرغیو خلک سل په سلو کی د لیک لوست نه برخمن او په پوهنتون کی د ښکاره برخی خاوندان وو ـ

خو افسوس او ډیر افسوس چی تر پرون پورې لغمان ولایت په عمومی توګه د افغانستان په پوهنتون کی په سلو کی یو او د قرغیو په سطحه هغه د چا خبره صفرنه ټیټه ونډه هم نه درلوده ، یعنی په کلو کلو له دی سیمی څوک پوهنتون ته ندی استول شوی ـ د لغمان له منځنیو ، مدرسو چی کال ، په کال یو شمیر شاګردان فارغیدل ، په سیمه کی دلوړو زده کړو د امکان نلرلو له امله دخړو اوبو په

ځیر د ترسب په توګه له منځه تلل او د ګوتو شمیر پانګوالو د ودانیو ، د تاداو د ډبرو په شان د ځمکی په تل کی ښخیدل اوورکیدل.

ننګرهار پوهنتون چی په نمایشی بڼه د ختیځ ولایاتو د محصلانو له پاره ځانګړی شوی و. په پای کی ختیځو ولایاتو په تیره لغمان ، بیا بیدو په قرغیو سیمه کی د مدرسو د کمښت او د پوهنتون د شمول د نصاب د نه پوره کیدو په پلمه ورو ورو د کابل پوهنتون د اضافه نصاب یا اضافه بست او باندنیو محصلانو نیولو د متمم اومکمل حیثیت غوره کړ. په یو ملک کی د پوهنتون جوړولو ایډیه یا خیال ، تولیدی موسسو ،یا اقتصادی فابریکو ته ورته کرداردی ، که څه هم په ظاهر دجلابېږي مرکز ، عمل یاسلوک تابع ښکاری ، خو په حقیقت کی دیوه بنیاد له سرچینی اوبه خوری. باید پوه شو ، چې د زده کړی بنیادونه لکه :

معارف یا پوهنې موسسات – دغه شان اقتصادی صنعتی او تولیدی جوړښتونه ، تولیدی مراکز دی . چی یو یی په عقل او پوهه سمبال پرسونل ، اوبل یی د ژوند د کار د وسایلو ظروف ، آلات او په دوی پوری اړوند عمده شیان راباسی. نو ځرنګه چی دیوې دغسی تولیدی موسسی د جوړولو له پاره لومړی د اومو موادو ، د لیږدولو واټن ، د شیانو ارزښت (بیه) او پرسونل په باب غور کیږی ، او وروسته ، فابریکه نصب او په تولیدی چارو لاس پوری کوی ، دغه راز د پوهنتون او دهغه دایرول هم وبوله. دوخت د چارواکو ددی پیرزوینی مننه به هله

سمه بریښیده ،چې په ختیځ زون ولایاتو کې د مدرسو له یوه پړاو بل او له بله، بل

ته د لوړیدو ، دغه راز د اومو موادو په توگه د نویو مدرسو جوړولو کار یې د

پوهنتون د حجم او ځانگو سره برابر پلان کړی وای. خو د کوم هدف په غرض چې

پوهنتون جوړشوی هغه مقصد ترلاسه شوی وای ، نه داسې لکه اوس:

**(مال زما او واک ئې د بل چا).**

**۳- کاغذ جوړولو فابریکه :** کاغذ چې د ښوونې او روزنې د پراختیا او

تعمیم ستر عامل یا د زده کړې پوهې او علم د اوږدې لارې ، دلنډون او خپرولو ښه

وسیله ده ، په ډیره آسانې د سرخکانو ، خیروخیلو او گمبرې سیندونو ته نژدې

سیمو کې ، چې د اومو موادو لکه : وښو لوخو ، راز ، راز بوټو له پلوه غنې او د

پریمانه اوبو د پوره بریښنا امکان هم شته. د کاغذ فابریکې جوړیدای شی.

خو باید زیاته شي ، لومړی خود درونټې له کانال ، لغمان بریښنا ونډې ځخه په

استفادې ، او که داهم څه شان ستونځمنه وي ، نو د چارباغ د نهر کریم له ویالې

چې د غرغیو له سیمې او چته مخ په سهیل ختیځ د الینگار الیشنگ سیندو ځخه

تر گمبرې غزیدلیده او هلته د زیاتو ځروبیو ایستلو او بند جوړولو او بریښنا

تولیدولو امکانات شته چې لا داسې نورې زیاتې صنعتې فابریکې هم چلولای

شي. خو افسوس........ ؟!

دلته یوازی له ولس سره مینه او په هغوی زړه سوی او د نړۍ له ولسونو سره د روا سیالۍ اړه محسوسه وه ـ سړی نه پوهیږی ، کوم بیځایه لګښت چې ، د پغمان د تپې په دیوالونو ، یا د کاریزمیر په باغ او شخصي ځارویو ، دا دیرش ځلوینښت کاله شوی ، دری لغمان او دوه ننګرهار ه جوړیدای شول ، دا څنګه هلته پیسی او فنی وسایل وه ؟ او دلتـــه چی وګــــړه نیزه چاره ده پیسې او امکـــانات نشته ؟!

**فاعتبر یااولواالابصار**

په ۱۳٤٤ کال د سویډن هیواد دنړی د بیرته پاتی هیوادو په لړ کې د درسی کتابونو د چاپولو په خاطر افغانستان سره د پنځه زره تنه کاغذوریا مرسته وکړه ـ سویډن د مرستی په ترخ کی دا غبرګ هم کړی و چی د دغه راز مرستی دایمي اویو ملک ته د تیار خوری روحیی ورکولو په معنا ندی ، بلکی دا یو راز تنبیهی او تشویقی اړخ لری ، که موږ پوه شو ، چی یو هیواد د دغه راز مرستو څخه ښه انتباه نه اخلی ، او خپل ملک کی نوښت نه راولی ، او داسی ورته تشبثونه نکوی ، نو موږ هم هغوی سره داسی وړیا مرستې نکوو ، او بندوو یی ـ مونږ ایران ، پاکستان او بنګله دیش سره ، په همدی شرط مرستی کړی ، او اوس مو بندی کړیدی ـ

خوافسوس چی دوخت چارواکیو ، نه یوازی هغه مطالب ، په پام کی ونه نیول ، بلکی رالیږل شوی کاغذ ئی هم په افغانستان کی د فرانکلن امریکایی سیاسی

شبکی تەچی پە افغانستان کی د چاپ دصنعت د ترقی پە پلمە جوړە شوی وە ،

وسپارە . **فاعتبروا یا اولوا الالباب.**

دلغمان : گمبری ، مهترلام ، سرخکان دښتوکی د ښارویو روزنی پروژو- وړی او دلو ،کاغذ جوړولو فابریکو امکان شتەخو زړە سوی او پاملرنە نە وە .

دلتە لە آبادی ،نا آبادې شاړی دښتی یو پە دوە دی او اوبە هم دافغانستان لە هری برخی زیاتی لری ، چی د کیفیت لە مخی د مصر د ځمکو سرە سیالی کوی ، او پە لږ زړە سوی او همت د دری بهاندو سیند ونولە پریمانە اوبو او لە ښو امکاناتو پە استفادی پە کرکیلە سربیرە داسی نوری زیاتی صنعتی چاری ترسرە کیدای شی چی د نیم ننگرهار کار ور جوړوی . د گمبری دښتە چی ۱۱۰ مربع میلە پراختیا لری . دغە راز د خیرو خیلو . گردی کڅ - میاخان کڅ او پړوائی ، اندروړ گړوچ دشتی د گمبیری یو پە دری دی . دلتە د هر راز مالداری اهلی مرغانو ، مچیو لبنیاتو وړینو فابریکو ، پاستوریزە پروژو او دهغو اړوندی موسسی رامنځتە کیدای شی چی نە یوازی د ملک اړتیاوی ،بلکی بهرتە یی د محصولاتو استولو پراخە امکانات هم شتە ، ربښتیا هم د ساکنبن ژوند پە اوبو او دا قدرتی عنصر تر هر ملک او سیمی پە زیاتە اندازە پە لغمان ، پە تیرە بیا د قرغیو سیمە کی شتە ، خو بیا هم لە دغە نعمت څخە د نە استفادی لە مخی د دی ځای ولس ډیر او تر او د خواری پە وجە پە نور ملکو کی لالهاند دی . او دیتە ورتە دی لکە چی پە شتە

پیسو کی څوک له ښار نه وړی ولاړ شی .

## ٤ - د له پیزی خپرونی :

د لغمان سیمه چې د تورسرو او نارینه وو په ګډون له پنځه لکو زیاته سرشمیرنه اود قدرتی سیمی اقلیمی ښو شرایطو ، سالمی پوهی ،ښه استعداد په لرلو د لمدو ختمو په څیر لړو اوبوته اړه لری . د نورو ولایاتو په شان د سیمه ایزو خپرونو ( رادیو = جریدی - کتابتونونو ) تر لاسه کولو ته چی د سیمو دوګړو یو له بله نفسیاتی ، دود یزو ، کړو وړو ،اړیکو ښلولو د پوهولو راپوهولو علمی بدلونونو د زړونو د مینی او محبت کوشیر ، اویو موټی کولو ښه وسیله دد ، زیاته اړه او تنده لری خو سره له غوښتنو او وړاندیزونو یی ونشو کولای دچار واکو پاملرنه ځانته راوګرزوی . اودا مهمه چاره تر سره شی . په خواشینی باید ووایو . ددرونتی کانال ( برښنا ډیم ) ، دلغمان ،قرغیو سیمی خلکو په زړه کی لکه میخ داسی دی ، چی د بند لس کلومتره مربع ایزه کاسه ددی خبری ښه بیلګه دد . خو که دښه نیت له مخی دامیخ یوه نیالګی ته ورته وبولو ، په خواشینی چی لږ ترلږه قرغه یی ولس یا لغمان خلک ددغه نیالګی ،سیوری ته هم چا پری نښوول ، او پخپل پلارنی ملک کی یی هم د پریښود و پیر زوینه او لورینه پری ونکړه . بلکې ددې بند د جوړیدو په وجه یی د ژمی سړو ،ترخو شپو ورځو سرخوړی لا پری زیاته کړه : که څه

هم پخپل وخت د لغمان ولایت له خوا په جلا وړاندیز کی د وخت له چارواکو دا هیله وشود ، چې د درونتی ،د برښنا بند په جوړولو ، د ملک یوه برخه جوړه اوبله نا جوړه یا ورانه نکړی ځکه قوم او ملک د « ولس مشری » سترګوته ورته دی ـ لومړی خو« ولس مشری » ته ښایي هر کله چی د دغسی یوه ډیم جوړولو امکانات د دغه سیند په سرله سرکنړو بابا راکوز کاکڅ ،ګردی کڅ تر منځ په شاړه ځمکه کی موجود ، او پدې برید له تور غره هغه پلوله فتح آباد راکښته پراخې دښتی خړوبول ، دری غازی آباد هومره وی ، نو دلته د ډیم جوړولو او ولس ته یی د بل پلو شړلو اجازه ورنکړی !

دویم که بیا هم « ولس واکی » ته داکار پدې برخه کی له بل ځایه آسان ښکاری او لوته په اوبو کی ایښودل نه وی ـ نو د دی ډیم دبرښنا له ښیګړو دې څه برخه « چی لغمان ډله ییزی خپرونی سمبال او ددغو شاړو ځمکو د څه برخی خړوبولو زمینه برابره کړی » دی سیمی ته په ګوته شی! خو څنګه چی شوروی روسیی لارښوونی ، په افغان ( ولسواکی ) سیوری اچولی او دهغی خوله او لاس یی تړی و ـ او دغه په ظاهر افغانی تحولات نه بلکی روسی اوږد د زمانی پلان شویو کړښو اولیکو پیلامه وه ، نو ځکه دی خبروته چا فرصت ورنکړ او سترګی یی پری پټی کړی باوردی که لغمان قرغیو ولسوالی سره د درونتی ډیم د برښنا عدالت شوی وای نن به لغمان په تیره د قرغیو سیمه دغسی اوترد ، پریشانه نه وه او یوه دریمه

برخه مهاجروبه په پیښور کې د ځای ځایکې او د معیشت د امکان د نه لیدو په اندیښنه د پیښور د هجرت ناخوالې اونادودې نه ځغملای.

## ۵ - د کلو سرکونه یا د حاصلاتو د ځرنګوالې او خودکفایي عامل:

هر کله چې لغمان سیمې چاپیریال د « ۷۲۱۰ » مربع کلومیترو په شاوخوا کې اټکل شوی او هغه هم په سلو کې ۸۰ غرونو ، دښتو ،سیندونو نیولې او لږه برخه یې د کرکیلې لاس لاندې ده چې دخلکو د ژوند له اړتیاو ،سره هیڅ اړخ نه لګوي.
په لغمان کې د ګوتو شمار کسانو پرته خلک لږ ځمکې او بې ځمکې دي، چې سبب یې د نفـــوس ورځ تر ورځ زیـــاتې او د ځمـکو پراختیا یا کیفیت ته پام نه لرنه ده. په لغمان غونډې تنګه دره کې د درې تل بهانده سیندونو او بې شمیره ایکره شاړې ځمکې بې او بوخوره پاتې کېدل پخپله د دغه حقیقت مصدق او ده یرې خیرانتیا خبره ده؟ که دا هم پرېږدو پخپله دغه سیندونه چې لغمان ته د مصر د « رودنیل » په څیر قدرتې سوغات دي ، نه یوازې د هغوله کیمیــاوي سرې لرونکواوبونه پوره استفاده نه کول ، بلکې په کلیو کې د سرکونو او لارو د نشتوالې په وجه لږ ځمکې کسان بیخي بې ځمکو ته ، ورته دي. که یې د لغمان ، په تیره قرغیو ګڼ شمیر کلیو سیمه کې ، یو پلو سړکونه ایستلې. کلې یې یو له بله د ځنځیري کړیو په دود نښلولې ، اوبل پلو یې لویو واټونو ته د ځمکو د محصولاتو

دا یستلو ، اومارکیتیو ته یی د لیږدولو لاری پرانیستی او فعالی کړی وای ،باور دی ، یوه خوا به د دغی سیمی له ځمکو په کال کی د « اوړی - ژمی » ددوفصلو په ځای ، دڅلور فصلوحاصل تر لاسه شوی ، او بل پلو به د کیفیت اوکمیت له مخی دنورو ځمکو پرتله یو په څلور هوموره زیات وای. ځکه دغه ځمکی اوګتوری اوبه ، د پر وریجو ،غنمو ،جوارو ، پتاټو ، پومبی ، ګنیو سربیره د یر شمیره ثمابه لکه: پالک ، ګندنه ،تیپر ، کدو ، کاهو ، ګلپی ، بادرنګ ، پیاز ، بادنجان ،طرایی ، دنیا اونور په هر وخت اوموسم کی برابرولای اوتولیدولای شی. نو ځکه وایو چې لغمان هم خود کفا او هم ناخود کفادی ، چی سبب یی په کلیو کی د سړکو نشتوالی او شتوالی ګنیلای شو ، او دغه راز ویلای شو . لغمان کی هم کافی ځمکی شته او هم نشته. شته پدې معنی چې یوه خوا په سوو ایکره ځمکی په شته اوبو کی شاړی او بې کروندی پرتی دی. بله خوا د کلیو سړکونو اولارو دنشتوالی تشه ده ، چی تر لاس لاندی آبادو کرونده یی ځمکو شتوالی یی هم بی پدله کړی ، او په نشت یی ګڼلی اوشمیرلی دی. دا ځکه که دځمکو محصولات یا تولید « پالک ، ګندنه ، ګشنیز اونور......... » له ځمکی له رابهرکیدو سره سم مارکیت ته ونه رسول شی ، یا یی لګښت« دلیږدولو ، رالیږدولو کرایه » له یو ځای بل ځای ته په څو لاسو ، د چا خبره « افتابه خرچ لیم شی » نوبیا لږ ځمکی کسان سابه او ترکاری نه کری ، او

یوازی په کال کی د هغی یوی یا دوه جریبه ځمکی دغنمو او وریجو فصل ته، هغه هم چی دسری ، تخم ،یوې ، کړ او لګښت پرې زیات شی لاس ترزنی نه شی کښیناستی چی دی ته دوخت د « چارواکو » د بی توییری دولس د نارضایتی اوبدمرغی ښکاره سبب ویلای شی.

## ٦- دافغانستان د ګډوډی علل :

هر کله چی د نفوس دسطحی ورځ تر ورځ لوړیدل اودعاید راټیټیدل ، دوخت واکمنی دیته وهڅوله چی د چارواکی مزی اوږده او ددولتی سازمانونو تشکیلات وپړسوی. او وغزوی څو په تورو سپین خبر تازه ځوانان ددولت دکارکوونکو په توګه په دغو مزیو کی ښکیل کړی«ددغو مزیو د پراختیا ،لګښتونه دنړیوال ښیګړپال سازمان ، دغه راز ښیګړپالو دولتو اوموسسو ، دمرستو له لاری برابریدل »خو د حیرانتیا خبره داده چې ددی په ځای چی دغه راز ښیګړپالی مرستی د هیواد دښتو او ورانو ویجاړو ځمکو هغه چی دملک دخلکو په لاس کی د آبادو ځمکو پرتله یو په دری دی ،ولګول شی ، اویا نوری تولیدی چاری لکه مالداری . دکاغذ فابریکی - قند- وریو اودلو ،نخی اودلو ،پوټکو، صنعتی فابریکو جی امکانات یی موجود ارزان اوچټک دی وهڅوی او راوسپړی ، څود ولس د تپی زړه ملهم اوپتی‌شی خو هغوی د چا خبره دخلکو د زړه په ځای دسترګو دوا درمل کاوه لکه چی وایی :

« په نــاقــابل طبیـــب مــــی سردی دردمی دزره دارودسترگو راکوینه »

او دخلکو د زړه دخپریکو ، د وینو څاڅکی ئی پــه وریښمین توکر پاکول ، لکه دغه پارسو شعری متل :

اشک از رخـــم ستردن چـــه حاصل

علاج دلـــم کن کـــز آن خــون نیاید

دی د وریښمو زندی نظام کی « د دولتی سرگرمی » بازار دومره تود و ، چې د ژوند نوری ټولی بنیادی چاری یی تر سیوری لاندی وی . د ماموریت د سرقفلی بیه د دغه دولتی جیل ( زندان ) د ځنځیر په کړی کی ډیره اوچته او د « کاریابی » په نوم اداری ، لوی تجارت و ، دغه راز ماموریتونه یا صنعتی علمی چارو کی گډون د لیاقت له مخی نه بلکی د معاملی په اساس کیده او هغه د « کلیلی دمنه » کتاب په روایت د ځنگلی سلطنت په دود :

[« گیدړ » د « پړانگ » په بست کی د تذکری یا شناخت کارت له مخی شامل شوی و . او « پړانگ » د بست نه لرلو په وجه د « گیدړ » په تذکره او شناخت کارت د ځنگلی دولت په تشکیل کی کارکاوه] د ارتشا او خیانت په لاره کی مهارت د مامور : حذاقت او لیاقت گڼل کیده . له ښاروالی او گمرگ نه نیولی تر عدالت او فرهنگ پوری ټولی چارې ملوثې وی . او معــاش د مــــامور لپاره « د چربوی سرشکمبه » مثال درلود . دې کار ، کردار او عمل په ملک کی حالات ډیر تاوجن او کړکیچن کړل . اخلاقی کمزوری وروستــــــی پړاو ته ورسیـــــدد ، د دین په

ورانــدی بی تفاوتی ،ځان پلورل ، تش فیشن ، ساز سرود ، نڅا د هنر او عزت ځای ونیو. پــه ملک کی بی حیایی اروپا او امریکا شاته غورزولی وه ، دغه مهال چي دهیـواد چارواک اوکارکوونکی له یوی مخی تیـارخواره شوی وو. دنړی د دوو سترو بلاکو « شوروی کمونست ،اروپا کپیتالیزم » په سوغـات ئی له افغانستان نه دبزکشی لوبه جوړه کړه . دهیوادوګړی هم په دوو، درو ډلو:

۱ - سوسیالست پلو کمونست

۲ - کپیتالیزم پلو اروپافیشن پال

۳ - مومنان چی دوو نورو ډلو « اخوانیـان » بلل وویشل شول . په دی لوبه کی روسان بریالی شول ، کومه لوبه چی « ظاهر داود » پیل کړی وه پخپله د هغو لپاره دام او دانه شوه ، داسی چی له یوه لوری لودن ورک او له ډیری وارخطایی بی له خدای پامانی له ملکه ووت. او بل خپلو داخلی کمونست پلوه ملګرو له کورکهول سره را وپرزاوه .

## ۲۶/٤/۱۳۵۲ داوُد شاهی جمهوریت :

کله چی داود شاه د ظاهرشاه ، اکا زوی د کورنی سازش « کودتا » په پلمه دنادر ،ظاهر زیات اوکم ( ۵۰ ) کلنی سلطنتی واکمنی ته د پای ټکی کیښود . ظاهرشاه یی له هیواد سره د بی توپیری او اداری فساد په تور دسلطنت له ګدی لری اوپخپله یی په ځای کښیناست . د داودشاه رژیم ، چی د شوروی روسیی په ملاتړ ، په کمونستی پلوه سوسیالستی بنه رامنځته شو ، ولس نور هم ، ناهیله

اودچا خبره له باران ، ناوې ته کښيناست.

که ظاهرشاه ، له امکاناتو سره سره دهيواد د فرهنگی . طبيعي منابعو له پرمختيا سترگي پټی کړی، يا دهيواد دخلکو د ښيگړو په وړاندی ، بی توپيره پاتی شو ، او د ملت د پوهی د لوړتيا خيال يی په دې «اتـمی» زمانه کی ونه ساته

داودشاه يی له تـن څخه ، ددين د جامو په ايستلو ،له شوروی روسيی سره، په معامله کښيناست. چی په رښتيا يی هم ولس له باران څخه ناوې ته کښيناوه.

داود شاه ،لکه څنگه چی ، په خپله کړنلاره کی ، په ملک کی په کمونستی دود ، دڅمکو اصلاحاتو ژمنه کړی وه، هغه شان يی په گدی له کښيناستو سره سملاسی ، د ملک په گوټ ، گوټ کی ، د کادستر د شبکوله لاری ، د هيواد والو دڅمکود اندازی، پر تثبيتولو لاس پوری کړ.

دڅمکو، دمحل ،موقعيت نقشي او جيوگرافی يی برابره کړه، اود عملی کولو په درشل کی و. چې کمونست پلو ملگرو يی را و پرزاو، اوهرڅه نوروته پاته شول.

## ۱۳۵۷/۲/۷ نور محمد تره کی د کمونيستی رژيم مشر

نور محمد تره کی د ظاهرشاه په مهال په ۱۳۲۰ کی، دباختر اژانس د ترجمی مدير ، په ۱۳۳۲ کال، د باختـر آژانس رئيس، وروستـه په امريکا کی د افغانستـان کلتوری اتاشه، بيا ئی د روسيی په ملاتړ اود داخلی کمونستانو له

خوا ، د داود شاه په راپرزولو ، په افغانستان کی دکمونستي رژیم د لعنتي بوټي بنیاد کیښود . تر ټولو لومړی یی پخپلو ملګرو ، د داودشاه دوخت ، د سروي شوو ځمکو ، ویش پیل ، او ولس یی دقصاب په غولی کښیناو . څومره یی چې لاس ورسید ، هومره یی د ملک سید ، شیخ ، عالم مؤمن ځواک داسلامولي په ګناه له تیغه تیر کړ .

## ۱۳۵۸/۶/۲۵ حفیظ الله « امین » :

دې وفادار شاګرد ، دخپل استاذ ، نور محمد تره کي په خوله بالښت او په ستوني پښه کیښوده سائي وایسته او تري تم یی کړ . حفیظ الله « امین » له هیواد والوسره تر ټولو بدی چاری پیل ؛ اوډله ییزی وژني ئی وکړي . خو عمریی لنډ و ، او ژریی سقوط وکړ .

## ۶/ ۱۰/ ۱۳۵۸ ببرک « کارمل » :

دی په ډیره بیړه ، د روسانو له یومليون زیاتو ځمکنیو ، هوایي « سره پوځ » په ډاډګیرنه ، په تورتم کی د آمو له سیند ، افغانستان ته راپوري ؤت ، چې « امین » ئی مړکړ ، دهغه په ځای کیښناست . او پدغسی هیواد پلورلي یی دوویم شاه شجاع په څیر ، ملک دروسی ښامار ، په خوله کي ورکړ . « سره پوځ » دافغان ولس سره پوځ ضد مارش ته ، په راکټونو ځواب ورکړ ، او په یوه سهاریي تر پنځو

زرو زيات، شاوخوا ښاريان، دشهادت گلزار ته واستول.

د روسانو «سور پوځ» د هيواد هرې خوا تيت شو، هر هرځـاى يې بې دفاع تش لاسي، نر، ښځې افغانان په ډيره بيرحمۍ شهيدان کړل. په نتيجه کې، هيواد والو هرڅه پريښودل په هجرت يې لاس پورې کړ او د روسانو په ضد يې د جهاد اعلان وکړ.

## ۱۳٦٤ دکتور نجيب :

هرکله چې د « ببرک » سياسي کمزوري او بيځايه قومي لاپې شاپې، په ډاگه او عمومي کرکه په زور کې شـوه. روسانو هغه له متـه ونيو، مسکو ته يې وليږد او، او په ځاى يې بيرحمه ستر، کاجي بې قصاب نجيب، د خاد چارو مسوول، کښيناو، اود ۳۷۵ واټن ويشتونکي سکات مدرنه سلاح يې ورکړه. خو ښاهم دمجاهدينو د برلاسي، اوکابل ښار کې، د برژنيف اومجاهدينو دبازار په پرانستو، په نجيب د تنې دناکامي کودتا د پيښې په اثر، دنجيب له سياسي کمزوري اودمجاهدينو په وړاندې د هغه د نه توانيدو، له حقيقته د پردې په پورته کيدو، روسيه په دې باور شوه، چې نور دافغان ولس د خوږې گولې، دتيرولو له خيال لاس په سر، او ځان ته د «اوږو» پوزې په ايښيدو دامريکا لمن

ټینګه کړی ـ

## ۱۳۷۱ - د اسلامی انقلاب بری :

ددغه کال د پسرلی مهال و ، چی جهادی شوری د « دوو ،څلورو میاشتو » نوبتی لانجه منو حکومتو له شعار سره یو ځای « کابل - افغانستان » ته راننوته له بده مرغه چې :

له همدغی نیتی تر ۱۳۷۵ کال پوری زیات وکم پنځه کاله تنظیمی مشران د ګدی په سر لاس ګریوان اوملک هماغسی دوری د وری وران و یجاړ ، او تر پریشان ؤ ـ مهاجرین نیم راستانه ، نیم په لاره اونیم دراتلو په تکل کی وو چی د افغانستان خپل منځی شخړی ئی ولیدی ځای په ځای ودریدل او خواشینی شول ـ

## د طالبانو د اسلامی تحریک څرنګوالی :

د قدرت دبلاکیف لاس په لطف اوکرم ـ د جهاد دلارې د شهیدانو د سپیڅلو ارواګانو په برکت ، د هغوی د سربرو ، په ځای ناستو بیځواکو پلرونو ځګیرویو ـ سرتورسر ، څیری ګریوان ،لاس په تندی فریادی میندو ، خویندو دغمځپلو اسویلو له څړیکو - دبی پلارو مور ، یتیمانو ، یسیرانو د شنه زړه ، تپی ځیګر ،ناهیلو سترګو ، مړو اوښکو له لوګی ، داسلامی تحریک طالبانو په بڼه، د شهیدانو داسلامی ورورولی او یووالی د پیغام ډیوه ،او رڼا راښکاره شوه ـ

چې پلوشې یې د اراکوزیا ، سپین غر له لمنو نیولې تر هندوکش ،کهستان ، بامیان هلمند ، زابل ، فراه ، غور ، هری ، بلخ ،تخار ، کابل پورې سیمو کې چتکې خورې ورې شوې . اودهیواد دهرې سیمې هر مومن افغان غوږ ته یې دا د شهیدانو خوږ اوبخښتور آواز ورساوه او د پیغام د تر سره کیدو ژمنه یې تر لاسه کړه . د طالبانو ، د اخلاص له مخې ، د شهیدانو د پیغام په خپریدو ، دافغان مجاهد پال ولس، و چې هیلې تاندې ، مات زړونه کوشیر او مړژواندې روحیه پیاوړې شوه . لکه ولاړې اوبه کورناست مومن مجاهد ورونه هم دشهیدانو له « آلارم » اودطالبانو دتحریک څخه له تاوه متحرک او یو له بله جوخت او متشکل ، یوموټی ،یولاس یوه خوله دهدف په لورې روان، اوداسلامي وروروالی په بنیاد یوقوت شول . قومي اوخپل منځي گوندیو اوشخصي لانجو ته یې د پای ټکی کښیښود .

## ۱۳۷٤-دافغانستان د اسلامي امارت دامیر المؤمنین په توگه د عالیقدر ملا محمد عمر مجاهد ټاکل

د هیواد جهاد پال ولس دوه زرو جیدو علماء کرام او نامتو مجاهدو قوماندانانو دلویې تاریخي ستري شورې (جرگې) د غونډې په ترڅ کې دعالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد په مشرتابه په افغانستان کې داسلامي امارت دستې او تاداو ډېره کښیښوده .اودجهاد د سپیڅلی لارې دشهیدانو له غوښتنې

سره سم یې پر الحاد ، دبرې دارزښتونو ، په تقاضا ،په ملک کې اسلامي قانون جاري ، محمدي (ص) شریعت نافذاو بشپړ امنیت تامین کړ.

داسلامي امارت ددویم تلین په وروستي وخت دامارت داداري تشکیلاتو دبدلون به ضمن کې لغمان ته دوالي په توګه دمحترم ملامحمد اسحق اخندزاده پیر زوینه، دامارت موهبه ، او ورسره قرغیو ولسوالي ته، چې د لغمان ولایت « قاعد » او زړه ګنړلای شي د ولسوال په صفت دمولوي فضل الله « خادم » رالیږنه په زړه پوري سوغات و. قرغیو ته دتحریک ددې تکړه آزمویلي ملګري ، دامارت مخلص بچي ، دلغمان مشرتابه دلارښوونې ممثل پوه هوښیار مسوول په رارسیدو ، اود قرغیو ولسوالي « وران ویجاړ » مرکز په لیدو ، سملاسي ، دسیمې له مجاهد پالو وګړو سره په تماس ، هغو ته دامارت دهیلواوهدفو ، دخرګندولو په څنګ کې په هر ، هر کلي کې دجومات دامام په مشرتابه ، دکلیو دڅوتنو مومنو مجاهدو ، په ګډون دکلي شوری تاداوکښیښود ، چې د خلکو د هیلو اورفاه اوسوکالي ، د تر سره کیدو په خاطر ، دامارت له محلي مسئوولانو سره ، په یو موټي کیدو اونژدې تفاهم ، دکلي کور داوسني او سباني ژوند ، لاري ښې اواري کړي شي. دی مسوول ولسوال ، په چټکۍ دغه عالي هدف ته د رسیدو په مقصد وکولای شو ، په سیمه کې دکلي شوری د وررولي د څنګیری لړی په جوړولو ، د سیمې ټول خلک د ، یوه عالي مقصد په شاوخوا ، راټول ،متشکل ،اواسلامي امارت له مسوولانو سره ،

يولاس اويو قوت کړي.

ربنتيا هم په ولس کي، پوهو، زړه سواندو، ښيګړيالو، عناصرو ته له چارواکو سره د قوم، وطن، په چوپړ کي، دګډون حق ورکول، په ټولنيزو چاروکي يي پوښتل نظر غوښتل او يو له بل سره د خير ښيګړو سلا مشوره کول او بيا په ګډه، په هغو عمل کول، د ولس د باور غتيه نښه ده. او همدا سبب دی چي قرغيو سيمي خلک د امارت له مسوول مولوی «خادم» سره د قومی امارتي چارو په ترسره کولو کي اوږه په اوږه ودريدل. او په شريکه د سيمي د غوښتنو د ترسره کولو په وړاندي د مناسب ځواب لپاره يوه خوله او يو فکر شول.

مولوی خادم، له فرصت نه په استفادی، د قرغيو ولسوالی «شوروی تيری ځپلی» له پيغور ډکي ورانی ويجاړی، اوتری او پريشانی بني ته، د سيمي د مشرانو، علماؤ ښيګړيالو پاملرنه راوګرزوله. ولس له مولوی خادم سره، په يوه آواز، د ولسوالی د بيا رغوني کار، د ټولو چارو په سر کي وباله. او په ډيره ميړانه او ريښتينولۍ يي، ژمنه وکړه چي دا د ننګ، غيرت، د پوزي پيزوان، وران ويجاړ مرکز به، خپل اسلامي امارت سره د مرستي له مخي، پخپلو پيسو، متو، او ځواک ودانوي.

لکه چي معلومه شوه او وينوئي ميړني ولس، د خپلو ژمنو د ترسره کولو له مخي، د دغه فعال متشبث «خادم» ولسوال په لارښوونه، اود ولسوالی د ټولو

مسوولو طالبانو، په همکاری نوموړی ودانی په پخو موادو، له( ۱۴۲۰/۱/۱۰ - ۱۴۲۰/۸/۳۰ ) هجری قمری له اتومیاشتو په لړه موده کی له پخوا لاښه ودانه اوداستفادی وړ وگرزوله. چی رحمت په هاسی قوم هاسی رهبری شه.

. والسلام .

(.............. ؟)

**بسم الله الرحمن الرحیم**

## لغمان او جغرافیایی موقعیت ته ئی لنډه کتنه

لغمان د جغرافیایی جوړښت ،له مخی د اوبو صراحی ته ورته ، یوه داسی شاعرانه سیمه ده چی ، له سهیل نه قطب ته غزیدلې ، قاعده یی پلنه ،او غاړه یی د قاعدی په نسبت د یره نری ده .

لغمان ، له سهیل لویدیز نه د ، وریښمین تنگی ،د ډبلی اوبو ، تور غره له لړی ، چی لویدیز ته یی د سروبی - کابل سیمه ده ، پیل شوی ، او شعاع یی مخ په ختیز ، د ډبلی په برید ،چی هاخوایی د کلالی . گندمک .نملی . فتح آباد . سره رود سیمی دی ، غزیدلی ، دې پلویی دلویو درگو کمو درگو - کاکځ - گردی کځ - سرخکان او عزیز خان کځ سیمی دی ، چی لړی یی د درونتی ، تر تونل ، د لغمان او ننگرهار گډو ، پولو ته ، رسیږي.

ختیز لمن یی مخ په قطب ، د گمبیری ، له دښتی نیولی ، د کوز کنړ ، د لویدیزو څندو غاړو ، په گډون ،د کاشمنډ د غره له لړی تر « کلمان - نور لام صاحب . د کنړ ولایت ، له غرونو سره د شریکی پولی ، په اوږدو ، د پیچ درې ، د « وامـا » او کانتیوا ، په برابر آن د بدخشان سیمی واخان او منجانو ، پوری غزیدلی ده .

لویدیز لمن یی د ډبلی اوبو ، له برید . کابل سیند نه ، پوری غاړه ، مخ په قطب ،

دمهتر لام بابا د زيارت ، په لوري ، د باد پښ -اوزبين . اند رور. ګروچ نه نيولي ، د اليشنګ درې ، ميا عبدالکريم صاحب د زيارت، په ګډون د سالاوغرونو ، له لړې تر ، دولت شاه - ګهنپال، کسوک - مندوک او پراجګان پورې، اوږده ده .

لغمان ،له سهيل پلوه ، د تل يا قاعدي ، له برخي ، پورته ، مخ په قطب ، د کله کوټ . ترخيلو حيدر خانيو ، شله تک . چهار دهي . تلګړو - مرکزي برخي ، قلعة السراج - ده زيارت ، غنډۍ - عمرزيو - سلطان غازي بابا اوعلي خيلو څخه مخ په قطب ، په دوو ، درو او شاخو ، ويشل شوی ، جـــي يويي اليشنګ اويل يي الينګار بولي.

**لغمان ، د اداري تشکيلاتو ، له پلوه په ، ( ٥ ) اداري واحدونو ويشل شوی**

**الف : قرغيي** ، چي له سهيل پلوه دلغمان قاعده ، تشکيلوي ، ګڼ شمير وګړي او ښې کرونده يي ځمکې لري . دلته د غلجوراز ، رازتيپې اوسيږي ، چي نارينه شميرنه يي ( ٢٥ ) زرو تنو ته رسيږي.

**ب : اليشنګ** : له مرکزي برخي مخ په قطب له دولت شاه سره پوله په پوله يوه غرنۍ ناوه ده . چي ژونديي څيني له کرکيلي اوځيني د لرګيو اومالداري له لاري تر سره کيږي .

**ج : الينګار:** دا دره چي له سهيل نه مخ به قطب ، د يوی اوږدی ، ترانکی په څير د ننګراج واخان او منجانو ، تر پولو غزيدلی ده ، د وګړو شمير يي تر اليشنګ

زيات او دوگړو ژوند ، يې د کر کيلې ، مالدارۍ ، غرنيو ميوو ، له لارې تامينيږي.

د : ننگراج : دا يوه سراسري غرنۍ ، اودراز ، راز ميوو ، لرونکو او بې ميوو ، ونو له ځنگلو ډکه سيمه ده . نفوس يې متوسطه او ژوند يې له مالدارۍ ، او غرنيو ميوو لکه : غوزان او جلغوزي ، ، تر سره کيږي . دغه سيمه يې پخوا نورستان بلله .

ح : دولت شاه : مخه يې قطب ، اوږده سيمه ده چې شعاع يې تر پراج گان پورې رسيږي ، برابر نفوس لرې ، اود ژوند چارې يې د مالدارۍ ، لرگيو ، غوزانو اوجلغوزو د محصولاتو له لارې تامينيږي .

**د لغمان سرشميرنه :** له نن (٢٥) کاله وړاندې دلغمان د ذکورو او اناثو (ښځو) سرشميرنه « دوه سوه زره « ٢٠٠٠٠٠ » تنو ته رسيده . دلته د ثانوي زده کړو (١٣) مدرسې ، د منځنيو (١٤) مدرسې - د لمړنيو (١١) مدرسې . د ديني علومو (١٠) مدرسې - د حفاظو او قرأ (٧) مدرسې فعالې دي.

**پيداوار او حاصلات :** دلغمان ولس چې د زياد ،زحمت له مخې د هيواد ،دوگړو مخه کښې دي ، د افرادو د گټوالي په نسبت د مالي وسايلو او اقتصادي امکاناتو د محدوديت اوتنگسې سره سره ، خودکفا او په ځان متکې دي . د ژوند يوه لړه برخه يې د کر ، کروندې څه کمه برخه يې د مالدارۍ ،څه برخه يې د لرگيو او ځينې

غرنیو میوو ، او زیاته برخه یی د لیک لوست - تعلیم ،تعلم دولتی ماموریت او په ټول هیواد کی د را ز ، راز عامه خدماتو د تر سره کولو ،د حقوقو له لاری برابریږی.

**ځاروی :** لغمان ،د قاعدې له برخی ، ختیځ ته د گمبرې اولویدیځ ته د سرخکانو مهتر لام بابا ، اندروړ ،گړوچ پوری ، دځړځای پراخی ، ورشوگانی لری چی د اوښانو ،غویو ، پسونو وزو ، بودگانو اونورو گلی اورمی پکښی ځری. چی له وړیو ، پوټکواو نورو محصولاتویی دهیواد په دننه اوبهر کی گټه ترلاسه کیږی .

لاسی صنایع : دلته راز ، راز وړینی ، نخی لنگۍ اوڅادر ، گلیم ، ټغر ، لیمڅی ، خامتا ، ډول ، ډول ټوپی ، چاقو ، چړې ،توری او نور دچارباغ - مندراوړ اوحیدر خانیو په ښارگوټوکی جوړیدی شی . خو له بده مرغه چی د کمونستانو د یرغل اوناتار په وجه ددغو صنایعو دستگاوی ورانی او اوس دغه چاری په ټپه ولاړی دی.

**اقلیم :** لغمان د طبیعی او قدرتی جوړښت له پلوه ، ددنگو ، دنگو ،غرونو گرو ، گرو ځنگلونو په برکت په دوبی او ژمی معتدل اقلیم او په زړه پوری آب اوهوا لری ، ځکه یی د کابل . ننگرهار ولسونه د سبو منډیی بولی او تل ئی په سبو اوترکاری بسیا دی. باید وویل شی ، لغمان سره د ښی آب و هوا ، بیا هم په

عمومي توگه د کرکيلي کافي ځمکه نلري اوداوسيدونکو دا ړتياو سره يي نده برابره خودالیشنگ . الینګار » بختور سینډونه ، لغمان ته د مصر د « رودنیل » په څير د کرکيلي لپاره خدايي سوغات ګڼل کيږي. ددغو سيندونو اوبه چي يويي دختيځ قطب له پلوه د بدخشان ،بل يي د پنجشير ، پراجګان او راکښته غرونو ، له اوبو سرچینه اخلي ، پخپله داسي طبيعي سره ده . چي کيمياوي سره يي ګرد ، ته هم نشي رسيداى.

لغمان ته د يو دغسي قدرتي برابرښت ،سمښت او اقليمي ښيګړو له پلوه ، دانســــاني زيږندي بزغلي د راز ، راز غلو ، دانو ، بوټو ، سبو او ونو دزرغونتيا « قوريه » هم وايي. نفوس يي داسي ګڼ دی ،چي دساحي پرتله ، دافغانستان له هر ولايت نه زيات بريښي . وګړي يي دساحي ، د کمښت اوتضيق له مخي ، په ونه او دړ برابر ، کم پړي او ضعيف الجثه ښکاري ، خو په کړوړو کي ګړندي ، فعال اود تعقل له مخي ، د ښه فکر ، سمې عقيدي او انديښنې، خاوندان دي.

رښتيا هم ، څنګه يي چي ، اقليم د څارويو . کرکيلي او نباتاتو په وده اوښيرازی کي اغيزمن دي ، دغه راز يي د خلکو د فکر او معنوی سلامتيا به وده کي هم اغيزه زياته ده .

**ژبه او فرهنګ** : داکثريت ژبه يي پښتو ده ، خو لږ دري ژبي ، پشه يي ژبي ، نورستانيان ، هم لري چي د ټولو ادب او فرهنګ يو شان ، پښتو ، دي.

لغمان کی د غلجو راز ، راز تپو ،خیلونو کورنۍ لکه : ابراهیم خیل - اوریا خیل - ناصر- عبدالرحیم زایی - مموزی - ځینزیی - هوتخیل - نیازی - تره خیل - جبار خیل - خروتی ، الکوزی ، بابکرخیل - محمد زایی ، ساپی او نور ،استوګنه لری. ددې سیمی ، پښتو ، د مرکزی ، افغانستان دخلکو په شان فصیحه روانه او په صرفی ، او نحوی قواعدو برابره ، پسته خوږه ، ژبه ده .

خلک یی علم دوست . هیواد پال . مؤمن . په شعرو ادب کی ،د ښی قریحی . استعداد او ښه ترنم خاوندان دی ، په معاصرو شاعرانو کی ، اروابناد ملک الشعرا ګل پاچا الفت ، اروابناد شیخ احمد خان - اروابناد مفتی عبدالحنان . اروابناد محمد نور او سید بهاوجان ښه یاد کسان دی ، چی اشعار یی د ټولنی دحقایقو -کږو وږو ښکلی انځور ، داخلاقو ، ورورولۍ او دیانت لارښود ګڼل کیږی .

د الفت دغوره اشعارو اوغوره نثرونو ،مطبوع مجموعی ، دعالی محتوی او ښکلا له پلوه هغه ځانګړی نمونی دی ، چی شعر یی له نثر اونثر یی له شعر خوندور ښکاری ، دالفت شعر او نثر د وخت له نامتو ، شاعرانو اولیکوالانو څخه خاصه ځانګړتیا لری :

او هغه دا چی د ادب له ډیرو ساده لوښو او ظروفو ، دالفاظو په اکسیر دعالی مفهوم اوستر مقصد ، ملغلرې دلوړ هدف په امیل کی پی یی اودلطیفومعانیو ، په قالب کی ئی تویوی.چی دالفاظو دمعنی دښکلا ، روانۍ او لطافت له مخې ، د رحمان بابا په څیر ژبه او د لوړ خیال او اوچت فکر له مخی ، دخوشحال خان ، په شان انګیرنه لری.

## د الفت د اشعارو نمونه :

که څه «الفت» دخپل چاپیریال د گلاب د بوټی ، هغه پیژندل شوی گل دی ، چې بی له رنگه ، د بوی اورایحی له مخی ، پیژندل کیږی . خوبیا هم د دوستانو ، د اصرار له مخې ،د هغه د گلونو لـه سمسوربڼ نه څوگلونه ،یا د جواهرو له خزانی ، څو ملغلری ، را اخلم اوپه داخپله گڼه وډه لړی کی ئې پی یم او پرې سمه وم ئی

داهم رښتیا ده چې د الفت نثراونظم ټول د قندو توکړی دی .خوبیا هم د هر چا خپل ،خپل او بیل ، بیل ذوق ، هرڅوک پـه دې ښ کی ، دځانله ځانله رنگ ،اوبوی خوښمن دی.لکه چې دلتـه زمافکر له مدعا سره سم ،ددغه باغ ،دغه گلان خوښ کړیدی:

دا هم باید پته پاتی نشی چې د «الفت» واقع بینی یادبصیرت مارغه،د سمی پوهی اوسالمی اندیښنی او عمل میزان دخپل لوړ خیـال او ژور فکر له جندرۍ ایستلی ،خپل لوری لودن داسی څرگندوی:

د وطن په نام وننگ باندی قسم خورم چې له ځان زیات د وطن غم خـورم ؟؟

نو ځکه د هیواد دوخت واکدار ته داسی ټکان ورکوی:

د وطن په حال که لږ ستا څه نظر وای ؟ ! یـاپـه تاکی د همت یو څه اثر وای ؟!

داړګر به اوس په شنو ونو سمسورو　　　هرسحر به د بلبلو په کې شور و

الفت صاحب کله چې په ۱۳۲٤ کال له پښتو اکاډمی ایستل کیږی ، دننګرهار ورغ پانې ، چلونه ورسپارله کیږی ،بیا د ننګرهار د قبایلو چارې ورپه غاړه کیږی ، او بیا یې د جلال آباد ښار د ښار یانو ، د نماینده په توګه په ۱۳۲۷ کال د افغانستان د شوری« پارلمان »اوومې دوری ته راستوی ، د شوری د رئیس په نیابت یې ټاکی . دا ټولې له دده سره هغه ناخوالی دی ، چې دی یې داسی دګی:

له دامه که دې خلاص کړم په قفس کی دې ایسار کړم
صیاده ! ما خو خو رنګه زندان لیدلی دی

عمل چې وی آزاد او انتقاد په کی بندی وی
ما هلته د ظلمونو سخت طوفان لیدلی دی

که هر یو رانه وژنې خیال و فکرمی مه وژنه
په دې کې مې وطن ته لوی تاوان لیدلی دی

الفت ، د اروپایی تمدن په سیوری کی ، د ژوند له حقیقت نه ،دانحراف دناخوالو له لاسه ، خپل خدای ته داسی لاس اوچتوی .

ازلی برخه مې عشق او محبت دی ځو مره خوښ یم چې زړه یم دماغ نه یم

دا څو ورځو چې د ژوند به نوم یادیږي بې له مینې که تیریږی ضایع کیږي

ته پخپله ښه پوهیږی لویه خدایه ! چې د دې عصر انسان څنګه انسان دی

د بشر مقتدر فکر لیوني شو اوس په فکر د ورانولو د جهان دي

نن دماغ لویې کوي په کیائناتو پیښ د عقل په دریاب کي لوی طوفان دي

دانسان دسعادت بیړۍ ډوبیږي فلسفي د تنازع پیښ کړي زیان دي

سعادت نشته د نن عقل حکمت کي زهر توي شوي به ښېښه د بصیرت کي

انساني ژوند به طبعي ژوند بدل شوي هر یو غواړي خپل راحت د بل عذاب کي

مادي ژوند په طبعي ژوند بدل شوی زده کوي د ظلم درس طبعي کتاب کي

همدردی او دلسوزي ورکړه انسان ته بیا یې عشق او محبت سره آشنا کړه

بیا د میني اور تازه کړه په جهان کي بهر ته نرم کړه دا سخت زړه په انسان کی

هاسي وايي په قدرت او زور مونده شي په غلطه لاره تللي ظالمان

په رتبه او نسب سړه نه لویږي

لویوالی هو مره مه ګڼه ارزان

## فکر او عمل

چې یو له بله بېل فکر او عمل شي عمل خوار شي ، فکر ورکه سمه لار کړي

## علت او سبب

هاسي وايي سوی سوی پتنگ ان چې مور پيژنو سيزونکی دځپل ځان

مور له شمعي ،شمعي ،اورله تيلي واخست واخست تيلې اور له لاسه دانسان

## اخلاقي ښودنه

که په خپلو هوسونو زوروري یي که په کور کې دې هيڅ نوي توانگر یي

چې یې کار د سرو نوی سرې ندي په خبرو که هر څومره ښه پوهيږې

## د سواد « ليک لوست » کچه : دلغمان په سلوکی له پنځوس زيات وگړي

دسواد «ليک لوست» له نعمته برخمن دي ، واړه ، زاړه ، ښځمن اونيستمن ټول له زده کړې ( کتاب ، قلم او کاغذ) سره ځانگړې مينه لري . لکه چې نه يوازې « نن ، پرون » بلکې په ټوله معاصره دوره کې ،دهيواد «چارواکي» ، د اداري ، سياسي ، فرهنگي ، قضايي ... ماشين زياتې ستنې دد ې سيمې د کارپوه عناصرو ، په اوږو ايښې ، اوهيڅ داسې ځرخ نشته ، چې دوی دې ، دهغه په چلولو کې ، ونډه ونلري. د لغمان ولايت خلک په خوی پاسته ، په رفع اووضع کې سراښه ،وطنپال ، زيارکښ قانع ،بې بده ، د ښه جلب وجذب خاوندان دي. خو افسوس ، چې دغه ولايت ، د تيرو پنځوسو کلنو ، دوخت چارواکو د بې توجهي ، په تيره بيا د ۱۳۵۷ کال ، دکمونست پلوو هيواد دښمنو ،بيا د شوروی روسي ، سور تالانگر پوځ د زړه

دردونکی ، لوټمار تیری په وخت دانسانی ، عمرانی ، مالی ، فرهنګی شتمنۍ د

زیان له پلوه دهیواد د نورو سیمو پرتله زیات وځپل شو. په دې چې سور تالانګر

پوځ ، له ټانګو او درنو وسلو سره یو ناحا په لغمان ته ننوت. بیدفاع او تش لاس

ولس ، چې غرونو ته له سملاسی ختلو ، بلهٔ لار ندرلوده ،هرڅه یې پرېښودل .

تالانګرویی د کورکلی د مال ، څارویو په لوټولو ، سربیره د استوګنی ودانۍ هم څه

وسوزولی او نوری یې په راکټونو ورانی ویجاړې کړی . سپین ږیری او ماشومان یې

په بیرحمی ووژل . (١٤) کاله وروسته ، چې د خدای په فضل ، د ایمان او یقین په

برکت ، دهیواد شاه زلمی ، مجاهد ورونه وتوانیدل ، د سره پوځ ټینګار مات ، او له

افغانستان څخه یې په ټیټ سر روسې ته وشړی، هیواد بیا د مؤمن مجاهد افغان

ولس ، لاس ته ورغی ، په تیره بیا چې د طالبانو اسلامی تحریک په هیواد کی

امنیت ټینګ او دیوی (٢٠٠٠) کسیزې لهٔ اسلامی دینی عالمانو او کره مجاهدینو

نه جوړی شوی « لویی جرګې » د پریکړی ، له مخې یې د عالیقدر امیرالمومنین

ملا محمد عمر مجاهد ، په مشرتابه ، په افغانستان کې اسلامی امارت ،

اعلام کړ . دهیواد په وګړوکی بیا سا وغړیده ،او د نوی ژوند په تکل شول .

# د سیمې نن پرون ته لنډه کتنه

## قرغیو ولسوالی

که څه له اسلامی امارت سره، د قرغیو په ولسوالی کی د سیمې دخلکو دخپلی خوښی په بی ساری مرستو، د ارزښتمنو، تشو ددوکونو برلاسی، ددې رسالې دلیکلو انګیرنه اومحرک ګڼلی شي. خو هر کله چی د قرغیوولسوالی دطبیعی جوړښت له پلوه په مجموع کی د ټول لغمان له ښیګړو سره د څواړخیزوښیګړو داړیکو په تداخل:

لکه لغمان ته د ورننوتو درشل، دلغمان سوق الجیشی سنګر. د ټول لغمان دقدرتی ښیګړو مجتمع «کابل -الینګار -الیشنګ» سیندونو مصب ،دسیمی جنګ څپلی او ترې ګډې وډې بنی ته ،د لغمان مشرتابه څانګړی ، هر اړخیزه پاملرنه ،د لغمان زړه ته ورته سیمه ده ،نولغمان سره دقرغیوسیمی تعریف اوڅرنګوالی داسی تړلی دی لکه :« ونه او خسته » چی یو له بل سره متداخل او متشکل دی ـ چی د لغمان له عمومی هیئات پرته یی ښیګړی نشی په ګوته کیدای.

نوځکه د دې پيژندګلي له مخې ، دګلانو ستاينه ، دباغ دځرنګوالي ترسيوري لاندې راغله ،اودباغ ځيړنه پرګلانو د مخه شوه دادی دلته« دنن- پرون » ترمطلب لاندې دقرغيوولسوالي فزيکي اوبشري ځرنګوالي اوښيګړو ته کتنه کوو:

## د قرغيوولسوالي ځلور خواوې :

- قرغيوسيمه له لويديځ پلوه : د کابل ،سروبي له وروستي بريد نيولی د کابل سيند هاخوامخ په قطب د شهيدانو - مياخان کڅ ، زيړانيو ،سرخکانو نه نيولی تر عبدالرحيم زيو ، کريم آباد - صفوخيلو . فرمانخيلو ، مندروړ ،خروټو حسن خيلو مشې خيلو او کله کوټ پوری غزيدلې ده .

- له ختيځ پلود شعاع يې د درونټې له برښناکوټ نه نيولې ،دګمبيری تر پراخې دښتې چې پای يې د کوزکنړ ،شيود شګی ،امبيړ ، کاشمنډ غرونونه تر کلمان پوری رسيږی.

- قطب پلو ته يې له امبيړ ،کاشمنډ نه نيولی تر تره خيلود « الينګاراليشنګ دسيندونومصب چې دمرکزی لغمان اوقرغيوبريد ګڼل کيږی.دې غاړه هغه غاړه ئې شلتيک ،کله کوټ اود کتب خيلو ،تر شپولونو اوځپرو پوری کلي او ولس ودان دی.

- سهيل پلويې د ډ بلې له اوبو، دکابل ،سروبي وروستي بريد نه نيولی ، له کابل سيند ځخه ، مخ په سهيل ، د تورغره لړی ،لويې درګې ،کمې درګې ،

سرکنډو بابا ،کاکڅ ،گردی کڅ ،خیروخیل ،سرخکان ، ژنگوره ، عزیزخان کڅ . د درونتې برښنا کوټ هغه پلوئی دننگرهار ولایت ، د سره رود ولسوالی ، مخ پورته یی ککړ ک ،فتح آباد ، نمله ،گندمک .څپر کلاله اوجگدلک غر نی سیمی دی.

## حاصلات ، صنایع او مالداری :

وریجی ،غنم.وربشی ،جوار ،گنی ،می، نسک ، پتاتی ، بادرنگ ، پیاز او هر راز ترکاری ددی ځای لومړی درجه غلی دانی اوحاصلات بللای شی. پومبه ،گدن او سنډ یی دویمه درجه دی.

دلته هرراز چاقو، چاړه ،توره ،بیاتی ،تیشه ،اره ، تبر ،لور ،د اوړو ښادر ،توپی ، دجامو خامتا ، دمندروړ اوچار باغ په ښارگوټو او نورو گنو کلیوکی جوړیدای شی. خواوس یی « روسی تیری » هرخه گډوډ کړیدی.

دلته د اورشوگانود پراختیا په وجه غوایی ،پسونه ،چیلی ،اوښان اوبودگان په زیاته اندازه روزل کیدای شی .اوکیدای شول .

دولس دوگړوژوند زیاته برخه په کرکیله ولاړه وه او ده ، خو دا د کرکیلی وړ ،تراوبولاندی ځمکی دوگړو د نفوس پرتله ډیرې لږی اودخلکودا ړتیاله میچ اوکچې، ډیرې تیتې اولږې وی او دی .

د سیمې دخلکویوه دریمه برخه ژوند دعلم « تعلیم اوتعلم » ،د چارواکی په دننه(چوکاټ ) کی د حکومتی چوپړله لارې تامینیږی ، اونور دلاس دتناکو.

بزگرۍ اومزدورۍ ، له مخې په « بخور نمير » ژوند کوي اوکاوه يي .

د سيمې د ښوونې روزنې (پوهنيزې سطحې) کچه او سرشميرنه :

دلته د ( ۵۰ ) کلن رسمي معارف په اوږدوکې دسيمې په زيات وکم ( ۲۵۰ ) کيلومتر مربع ساحه او د هغه وخت له سرشميرنې سره سم ( ۲۵ ) زره نارينه لرونکې وچې په آباده کې ، چې نوريې : « کمکې يونان » بولي ، يوازې دچارباغ او مندروړښارگوټو په پنځوس کلنه زره خوراساده بنه دوه لومړنې مدرسې درلودې هغه هم ددرسي کتابونود کمښت او دمناسبو ښوونکو او سرکونو نه لرلو لامله ددې سيمې د هيلو اواستعداد پرتله ولاړو اوبوته ورته وې .

ددې سيمې د رسمي معارف بنيادونه ، دخلکو له اقليمي ، ښيرازيو برخمن ، قدرتي استعداد ، او تاندو علمي هيلو ، څخه په ډير ، تيټ پوړ کې و . ځکه په سلوکې شپيته ، خلکو خپلې تنکۍ هيلې په شخصي هاند اوهڅو د آزادو منابعو ، ددينې علومو دسمندر له فيض نه ښيرازه کولې اوهم داوجه وه چې که کله به دغه راز استعدادونه دعصرې روزنې داساسي ماشين مخې او پرې ته برابر ، اوورغول شول ، نو دملک سترکسان به ترې جوړ ، اود هيواد د ټولنيزو اداري ، علمي او سياسي چاروستنې به يې په اوږواوچتې کړې . د ساري په توگه دلته ددې سيمې

دخو تنو پیژندل شویو بچیانو نومونو اولنډوکرداړونو ته گوته نیسو:

## ۱ - ملاالهام الدین اخندزاده :

دلغمان ، عزیزخان کڅ ، د کجوری په ملا صاحب یاد دی د دینی ارشاد تبلیغ په لړ کی د نجم الدین اخندزاده ، چی په هډه صاحب یاد دی، د لړی له وروستی کړی. دد ینی آزادو مدرسولوی لارښود ، د لنگر ،او دسترخوان خاوند ، داسلامی جماعتونو ، سپیڅلو د ودونو اومذهبی سننو تازه ساتلو نه ستړی کیدونکی عالم شخصیت و ، چی په ۱۳۳۷ کی وفات شو (انا لله و انا الیه راجعون)

## ۲ - میر سید قاسم :

د چهارباغ د ساداتو کورنی ته منسوب ، دفقهی علومو ، کلام ، منطق ،فلسفی او حکمت لوی عالم ، چی دوخت په عصری علومو یی هم بشپړه احاطه درلوده ،د آزادو مدرسو له لاری ،د ذاتی استعداد په برکت دمعارف د وزارت د نیابت ، دعدلیی وزارت اوعلومو اکادمی د غړیتوب مقامونو ته رسیدلی ، او د افغانستان د معارف د پلار ، حیثیت یی گټلی .په ۱۳۵۰ کی وفات شویدی (انا للّٰه وانا الیه راجعون)

## ۳ - شهید مولوی حبیب الرحمن :

دا جناب په هیواد کی د اسلامی پاڅون دلومړی ډلې پیژندل شوی سرښندوی او په ظالمانو د لومړی گوزار او برید لومړنی مخکښ دی .چې داودشاه په ۱۳۵۴ کی پــه

نادو ده شهیــــد کړ (انا للّٰه وانا الیه راجعون)

## ٤ - مولوی شمس الدین «مجروح»:

په ختیه د ساداتو له ذُریی ، او د تلګړو په پادشاه مشهور دی٬ چی د افغانستان د سرحداتو وزارت٬ عدلیی وزارت ،د صدارت د مرستیال چارو او افغان اکاډمی افتخاری غړیتوب د تر سره کولو ویاړ یی تر لاسه کړی — موفق شاعر ،ستر ادیب او لوی سیاست پوه دی.

## ٥ - ملابسم اللّٰه «ساپی»:

د لغمان زړور دینی عالم ، اسلام ضد اعمالو سخت مخالف ،په حکومت د اسلام ضد نیوکو باتور ملا ، چی د عمر زیاته برخه یی د ظاهر شاه په زندان کی تیره کړیده. افغانستان ته د کمونستی رژیم د راتلو په درشل کی د (٩٠) کلو په عمر کمونستانو شهید کړ. (انا للّٰه وانا الیه راجعون)

## ٦ - ګل پاچا «الفت»:

د میر سعید پادشاه زوی چی د عزیز خان په کڅ کی زوکړشوی . او اسلامی متداول علوم یی په کور ،او نوره لوړه دینی زده کړه یی ، د هیواد له نامتو علماو ترلاسه کړیده.

« الفت » ښنګه چې د ښه استعداد په لرلو دینی علوم په ښه توګه زده کړل ، او

ښه استفاده یې ترې وکړه ،دغه راز په پښتو ادب کې هم وتلی او د وخت بې ساری

پوه فاضل و ، چې د ښو اخلاقو او سالمې پوهې په برکت ،د هیواد د ملک الشعراء ،

افغان اکادمۍ مشرۍ ، د هیواد شورۍ « پارلمان » ،نیابت او سرحداتو وزارت

پوړیو ته ورسید ،او ښه وځلید.

« الفت » د ښه خوی ، پوهې ، تقوی ، ډیرې حیا په څنګ کې د بداهت او خواږه طنز اوچت استعداد هم درلود . د ساری په توګه : یوه ورځ د جلال آباد په ښار کې ، چې هغه وخت ، دومره آباد او ودان نه و ، له بابا پاچا ، د کوزکنړ دسیدانو د کورنۍ مشر ، او سید شمس الدین« مجروح » سره ولاړ و .په دغه فرصت کې ، له دوی څو ګامه وړاندې ، دوو خرو یوه د بل څټ او غاړه ،ګرول .بابا پاچا ، مشهور طنز بول له دغه فرصت نه په استفادې «الفت » ته وویل : « ګوره ! چې په خرو کې هم الفت شته »!؟ الفت فی البدیه ورته وویل : هو ! لکه زه چې په تاسو کې یم

«الفت » د کابل درنې مجلې ، او ننګرهار مشهورې ورځپانې ، مسوول چلوونکی په توګه هم کار کړی چې دده د وخت د مجلې او اخبار د منځپانګې ځای لا تر اوسه هم ندی ډک شوی. هغه چې په هغو ناسازو شرایطو کې په ادبي ژبه په« چارواکو » کومه نیوکه ،کړې اوس یې هم څوک نشي کولای دساری په توګه : «ای د کیږدۍ خاونده سپی دې ونیسه » نثر او « نوم یې نشم اخستلای خو یو خان و. » نظم د دې مدعا ښه ثبوت دی. د الفت ستاینه زما غوندې د یوه کمزوري

لیکوال کار ندی .خودومره ویلای شم چی «الفت » د قرغیو ، عزیزخان کڅ نه ، دلغمان هم نه ، د افغانستان په سطحه د افغان ولس د ادب مانی او پښتو اوپښتونولی دستا ر دی په (۱۳۵۳) کې ئی له ژوند سره خدای پامانی وکړه .

( انا للّٰه و انا الیه راجعون)

## ۷- مولانا برهان الدین «کُشککی»:

د مولوی غلام محی الدین زوی، په ختړه یوسف زی او قرغیو سیمی د «ډهاندر» د اخند زادگانو کورنۍ ته منسوب دی.

د مولانا مرحوم والد مولوی غلام محی الدین ، چی وروسته د اډې صاحب نجم-الدین اخندزاده «رح» په لارښوونه ، د سره رود د مشهور ملا دیبلو صاحب ، حضور ته ورغی او هلته په کشکک کې مسکون شو. برهان الدین چی د متداولو دینی علومو مبادی له خپل والد او شاوخوا علماء زده کړل، ددینی علومو د لوړو زده کړو له پاره هند ته ولاړ او هلته یی د په دیوبند کی خپلی زده کړی، بشپړی کړی هر کله چی د برهان الدین ښی پوهې ، پراخه سینې او ژور نظر د اسلامی او ملی اوږدو هیلو د تڼ سره کولو لا مله ،یوازېد یوی بانډې یا یوه کلی ، د جومات محراب او منبر په وعظ او تبلیغ بسنه نشو کولای . ځکه یی د وخت د اخبار له مشرانو سره په تفاهم په سراج الاخبار کی د محرر په توگه ، ځانته د ښو اینبودو ځای پیدا کړ . د ښه کار ،لیاقت اوپوهی په ثرگندولویی ،یو وخت د اصلاح معتبری

ورځپانې مشرى او چلونه تر لاسه کړه . يووخت دعلمي اوچت استعداد په برکت ،

د معارف عمومي ښووني روزني د رياست پوړى ته ورسول شو. چې د ښې پوهې ،

ثبات ، استقامت اوزيات کار په نتيجه کې ښه وځليد . خو وروسته ورسره نادود سلوک شوی .

بيا د پښتو ستر توب مقام رئيس ، د آيينه عرفان د خپروني مسوول ، بيا د

کندهار معارف ريس ، وروسته د دولتي مطابعو رئيس او وروسته د اطلاعاتو او

کلتور وزارت اداری مرستيال ،

## د مولانا صاحب ځانګړتياوې :

وائي ، په کابل کې د فرانسي سفارت يوه کار داره د افغانستان آريانا فرانسوى

مجلې چلونکي وه . کله چې مولانا د دولتي مطبعي رئيس و ، دغه ښځه د مجلې د

چارو په برخه کې مولانا ته ورغله . که څه مولانا ژر تر ژره د هغې رسمي ، ستونځه

حل ، او څه ډيل وتال يې په کې ونکړ . خوچې ورته و نه دريد او په لاس يې ور سره

روغبړ ونکړ ، نو ډيره خواشيني شوه په کابل کې يې د فرانسي سفارت ته شکايت

وکړ . سفير د اطلاعاتو کلتور په وزير « سلجوقي » احتجاج وکړ . مولانا وويل څه

چې اسلام کشککي ته رخصت ګڼل ، هغه يې تر سره کړې دي ، او نور نويو افغان

ملا ، د اروپا يي کلتور ، د درناوی په خاطر دين او اسلامي کلتور نشي شرمولای .

- ظاهر شاه ، مولانا د مزار (بلخ) د ګمرک د رئيس په توګه وټاکه

.خومولانادا کار دخپل مسلک نه مخالفت اود شخصیت د تباهی دام او دانه وګاڼه ،ظاهرشاه ته ورغی اووی ویل : زه به ډیر خوښ وم چی د پل خشتی جومات خطیب موتاکلای وای. هلته خوبه می یوشمیر لمونځ کوونکو ته د دینی لارښونو ملی ادابو اوسننو د ښوونی خدمت کاوه ، دلته خو د توتی په پنجره کی ښکیل شوم . ملا اوخځګیر چیرته په لارد کی هم سره ندی ملګری شوی ؟! ما دی مړ کړی ،خون می وربخښلی ،خو روح او مسلک می دی نه وژنی او افغان نیته لیک ته مې دی د ملا په حیث نه شرموی ؟!

**ظاهرشاه وویل :** « چنانچه در عایدات گمرک بلخ کسر زیادی رونما گردیده ، که برای رفع نقیصه در رجال کشور چو مولانا مدبری به نظر نرسید ، لابد چنین کردیم . » مولانا وویل : که موضوع د اعتماد اواطمینان وی خو« ضرابخانه - مطبعه » چې یو سکه او بل معنویات ډکوی تردی ماته ښه او د دولت په زیاته ګټه هم دی. پادشاه له خپله هوډه ،چی د مولانا تنګول و ، لاس واخیست او مولانا مطبعی ته راولیږل شو. مولاناد شاه ولی الله کابلی پاړسو تفسیر په ننني پاړسو سم اودهغه پشتو ژباړه تر سره کړ چـــی پـــه ( ۱۳۲٤ ) کال دولتی مطبعه کی چاپ شول .

مولانا کشککی، په پشتو ژبه د مولانا شبلی نعمانی اوسید سلیمان ندوی

اردو سیرة النبی «صلعم» د ژباړې نوښتگر دی ، دا خدمت مولانا پیل او د ده له مړینې وروسته پشتو اکادمی تعقیب او ترسره کړ.

د کُشککی صاحب د ټولو علمي ،دینی سترو خدمتونو په لړ کی د پښتو پاړسی تفسیر او سیرة النبیؐ «صلعم» لوی خدمت داسی شهکاردی چی په ننني عصر کی دده مقام د خپل وخت له پوهانو اوچت ثرگندوی او تل پاتی خدمت باله شی ارواح دی ښاده او د حق په رحمت کې دی وی.

په ۱۳۳۲ کال یی له جهان سترگی پټی کړی. (اناللهٔ و انا الیه راجعون)

## ۸- مولوی عبدالرشید « ساپی » :

په ختـه ساپی اود نوده مـری «لړه موړې» په مـولوی مشـهور دی . ده د دینی علومو په « ۱۲ » اصلی او متممو رشتو کی د سیمی - ننگرهار - د هیواد دځینو ولایاتو د یو زیات شمیر دینی علومو طالبانو ته ( ۷۵ ) کاله وړیا آزاد تدریس کړی. او له دوو زرو زیاتو طالبـانو ته یی په بیلو بیلو رشتـو کی د پوره ملایی «دستار» تړلی دی.

ده په دغـو پورتنیو دولس گونو دینی علمی رشتـو کی په منطق ، حکمت او ریاضیاتو کی تر ټولو زیات تخصص، تبحر او احاطه درلوده.

ده په د الله (ج) د فضل اومهربانی په وړاندی د زیاتی مننی اوشکریی په ترځ

کې ویل : که ابن سینا په دې وختو کې ژوندی وای ما به دده ځینی اشتباهات ورپه گوته کړي و. ده ویلې ځنې ورونه منطق ته په ښه سترگه نگوري ، هغه رتي او د بې لارې کیدو سبب یې گڼي . خو زما په عقیده منطق دعلومو لار ښود مکمل او متمم دی. او بې منطقه علم او ژوند ویجاړ او ناسم ښکاري . منطق اصلاً دمطلب دښې افادې ، خوږ والی او حقایقو برښنا ده . په خبره یا خبرو کې چې منطق نه وي هغه په غوږ و سمې نه لگیږي او زړه ته نه پریوزي او نه منل کیږي . لنډه داچې مولوي صاحب منطق دخبرو یا ژوندکیف ، خوند او سمښت باله .

مولوي عبدالرشید څنگه یې چې پوهه او معنویت دوخت له کسانو ، اوچت و ، په خوی هم ډیرحلیم په زده کوونکو مهربان سخي او کریم انسان و. صبر او قناعت یې بې ساری، طمع او حرص یې ندرلود وایي د وخت د حکومت دعدلیې وزیر سید عبدالله چې طبیعي مغرور کس و. د پوهې او علم نه ئې په دولتي چارو کې د استفادې په خاطر کابل ته وغوښت ، خوچې د وزارت دمقام خونې ته ور ددننه شو. اوسلام یې وکړ . سید عبدالله دخپل طبیعت له مخې تیټ کتل ، اود سلام ځواب یې په پټه خوله تیر کړ. له څه مکث وروسته ئې سر پورته کړ هغه ته یې وویل « ازکجا می آیی !!؟ » ده ورته وویل ! « له آسمانه ! »

وزیر بیا ورته وویل : « در آسمان چه می گفتند ؟! » ده په ځواب کې ورته

وویل « هلته‌ویل کیدل « لعنت الله علی المتکبرین »

وزیر په خپل حساب ورسید او له خپل غرور راکوز شو. له مولوی صاحب سره یی روغبړ وکړ. مولوی صاحب چی آزاد تدریس په وزارت نه ورکاوه ، هغه شان چی پوهیده ، د دولتی چارو له خدمت نه یی ښنسنه وغوښته رخصت شو.

## ۹- مـولـوی عبـدالقـدیر:

د چهار باغ د وروستی سدی لوی مدرس، دینی عالم او پرهیزگار شخصیت و ، چی مولوی عبدالرشید هم دده د پوهی ، آزاد تدریس ، علمی فیض ډیره ستاینه کوله ، او کجوری ملاصاحب هم دده د دینی علومو تدریس او علمی سلوک او تقوی ستایلی دی. دسیمی په ملایانو سره بیره د ننگرهار ، کنړ ، آن آزاد و قبایلو ځینی دینی عالمان هم دده د صرفی نحوی ، منطقی او فقهی سمندر له برکته برخمن دی. مـولوی صـاحب د روانی پیـری په ځلورمـه لسیـزه کی وفـات شـوی دی. ( انا لله وانا الیه راجعون ).

## ۱۰ - میـاء عبـدالـرزاق :

دا د چارباغ د ساداتو د ذریی پرهیزگار ، تکړه فقهی صرفی ، نحوی مدرس

عـالـم فـرزنـد دی چی دینـی علوم یی دسیـمی لـه آزاد و علمـاوو تر لاسـه کړی او (۳۵) کـالـه یی دکـابـل ښـار، ریـکا خـانې پـه جـامـع کـی خـطـابـت کـړی دی، ده دظاهرشاه او داود دحکومتونو پـه غیر شرعی اقدامـاتو لکه دځمکو ویش، رفع حجاب. د سرودونو اوسینګارونو افراط، پـه تیره د روژی پـه میاشت کـی پـه دغـه راز بدعتونو او نارواچارو زیاتی ګوت ځنډنـی کړی. دی د داود شاه دواکمنی پـه وخت سخت تهدید او وځو رول شو، چی د دغوځورونو پـه پای کـی یی حق ته ځان تسلیم کړ. ده وصیت کړی و، چی زما جنازه چارباغ ته یوسی، او د جنازی لمونځ می دی دمولوی عبدالرشید پـه امامت ترسره شی. خو دکابل علماء و د ده د جنازی لمونځ د پل خشتی پـه جامع جومات کـی وکړ، او جنازه ئی لغمان ته رخصت کړه.، مـګر مـولوی عـبـدالرشـیـد یی لـه وصیت سره سم پـه چارباغ کـی د جنازی لمونځ تکرار کړ. (انا لله و انا اله راجعون)

## ۱۱- قـاضـی عبـدالقـدوس:

چی صدیقی کورنی ته منسوب او پـه قاضی صاحب یاد دی. د سیمی فقهی جامع معلوم الحال فصیح، بلیغ دینی عالم و. څـه موده یی د دولت پـه عدلی چارو کـی د قـضـا تر مـقـام پـوری چاری پـه پوره پـوهـه اودرایت ترسره کړی دی. خـو وروسته یی د دغه ماموریت لـه لین او چارو سره خدای پـه امانی کړی. مګر د هیواد

او ولس د ینی او ملی مصالحولوری لودن یی همیشه تعقیب کړی او د دغه راز سمونو نه یوه کړی وزگارنه دی ناست دد د قوم ملکی ، خانی نه ده کړی . خو خانان ، ملکان دده په مخکې لاس په ادب وو او قوم ولس ورته د ډیر گران او عزتمند شخصیت په سترگه کتل . تل یی د دولت په چارو کی ، د دینی او اسلامی سننو نه ددفاع په خاطر مداخله کړی ، او په ځغرده یی په دولت د دینی فساد دمخنیوی لامله غږ کړی دی .لکه چی د موی مبارک په باب یی د هیواد دملی جرایدو د یوه ناسم حرکت په وړاندی په (١٣٢٦) کال د ظاهر شاه په دولت اعتراض وکړ او مسوول کس یی د جزا وړ معرفی کړی او سزای ئی ورکړیده په کال ( ) وفات شوی . (انا لله وانا الیه راجعون)

## ١٢ - مولوی بهاء الدین :

د قرغیو سیمی د اندوړ د یوی دینی علمی کورنی فرزند، ستر فقهی عالم ، په تیره د تفسیر ، حدیث ، منطق او ریاضیاتو په برخه کی د ښی پوهی خاوند و . بهاء الدین ، لومړنی دینی زده کړه له خپل والد مولوی گلدین او دینی لوړه زده کړه د هند د دیوبند له مدرسو تر لاسه کړیده .

مولوی بهاء الدین ٤٠ کاله په رسمی مدارسو کی د هیواد طالبانو ته د حدیث

تفسیر اوریاضیاتو تدریس کړی . قانع متواضع اوپرهیزگار دینی عالم و. ده دولس د جومات امامت وړیااوبی ریاتر سره کړی ، په تولنیزو چارو کی یی تل د یو عادی فرد او لوی مبلغ په حیث ګډون کړی . خلک یی د حقلاری ته رابللی او له نواهیو ئی په ډیره خوږه ژبه اوګتورو موعظو منع کړیدی . مولوی صاحب د هیواد په جهاد کی پوره برخه اخستی او په ۱۳۷۱ کی وفـات شوی ▪ انا للّٰه وانا الیه راجعون

## ۱۳ - حاجی ملا محمد نوشیر ، صفو خیل سها ک :

د شیخ ګلشیر زوی ، فقهی ،نحوی ، منطقی ملاچی په نجوم ، ریاضی او پښتو دری نظم کی د سمی املا او انشأ ، ښه خط نامتو ناظم او لیکونکی و ▪ .

دی د مرحوم ملا سید علی ، د سیمی ستر دینی عالم او ناظم تلمیذ او پر نجوم ، ریاضیاتو سربیره ، د کادستر په چارو کی هم خورا سرابن او دقیق و.

هغه وخت چی مدرسی او ښوونځی لا نه و ، عام شوی د سیمی خلکو ، د لیک لوست ، دری نظم او انشاء او ریاضیاتو زده کړه په آزاده توګه له حاجی ملا کوله . دی د ملاسیدعلی استاذ هغه یوازنی تلمیذو ، چی په مسجع نثر کی یی لوی لاس درلود اوساری یی نه و ▪

ده د دربار د (منجم اخندزاده حبیب الله) سره د نجومی دقیق سنجش له مخی کال په کال کالنی (جنتری ) جوړوله او د کالنیو نجومی پیښو پیشین ګویی

برابروله . وایی یوه ورځ د کجوړي اخندزاده صاحب له طالبانو سره په ناوخته کې

د حاجي ملا پوښتنې ته راغی . خو څرنګه چې د لوی ملا صاحب له هر راز ښګلی

پی ، مستي ډیرې خوښې وې نو د مستو غوښتن لیک یې د یو دوست په نامه چې

غواوی یې درلودې داسې ولیکلو :

**« محب من ماست ، که درخانهٔ شماست ، موافق طبع محرورهٔ ماست ،**

**گر فرستادید خوب ورنه سبب مأیوست ماست ! » .**

حاجي ملا او دده کورنۍ د داود شاه په وخت ډیره وځورول شوه ، او په

سپینه ږیره ئې یو کال زندان کې وساته او وروسته د هغه د واکمنۍ په وخت په

( ۱۳۵۳ ) کې وفات شو . انا لله وانا الیه راجعون .

## ۱٤ - مولوی میا ګل « خاکسار » :

د مشهور ناظم ملا سید علي زوی دی چې د کوز کمال پور په ملا یاد ، ښه فقهي

مدرس ملا او تکړه کارد ستر هم و ، چې ټول عمر ئې په آزاد ، وړیا تدریس تیر کړی ،

او د پلار په ګام یې ګام ایښی ، د دری نظم او انشأ تدریس له ئې د سیـــمې زیات

ادب دوستان مستفید شوی . متواضع ، کمین او فقیر طبع عالم و . په ( ۱۳۶۰ )

کې وفات شوی . انا لله وانا الیه راجعون .

# سید غلام حیدر

د سید سرور پاچا زوی د لغمان د چارباغ د پاچا یانو په کلا کی زوکړشوی او دساداتو د ذریی اصیل بچی دی. د ینی علوم ئی له آزاد و عالمانو ترلاسه کړی او دعصری علوموتکړه پوه اوماهر و.

سید غلام حیدر پاچا دامانی سلطنت د وخت د بهرنیو چارو وزیر او د هغه وخت داد بی حلقو وتلی ادیب شاعر او سیاست پوه و .

دی له آمانی دوری د نادرشاد ترسلطنت د استبدادی حکومت او دیکتاتوری چلند مخالف و. هغه په اسلامی سیاسی قلمرو کی، داسلامی قانون له حاکمیت پرته، آزادی نیمگړی اودغه شان آزادی یی دخلکو له باران، ناوی ته کینول گڼل .

دد نورو له حاکمیت دتشی خاوری آزادول ،دخلکو دفکر او غوښتنو بندی پریښودل او هماغه شان تر استعمار لاندی ساتل، داسی بلل لکه څوک چی له پښو څولنیماتې، ولچک خلاص اوسترگی ترلیپرپړدی . دد دغه شان آزادی ته سیاسی لوبه ، قومی دوکه، له یوډ له ایز استعمار، بل ډ له ایز استعمار ته ور دانگل او په نوی سیاسی حلقه کی ننوتل او هیوادوال تیرایستل بلل.

غلام حیدر پاچا ، آزادی داسلامی قانون، له حاکمیت سره تړلی گڼله او آزادی ته ئی داسلام په آینه کی کتل ، دملک آزادی او د سوچ بندول ئې، بل شانته زندان باله، نوځکه داسلامی نهضت له ډلې، قاضی عبدالرحمن ،محمد انور بسمل اونورو سره په افغانستان کی داسلامی قانون د جاری کیدو په تکل کی و. غوښته

ئي په هیواد کی اسلامی لار ښوونه په قدرت کی شی نو ځکه یی د شعر په ژبه داسې انګازه کوله .

سخت دلتنگ شدم خانه صیاد خراب

کاش روی قفس جانب صحـرامی بود

د وخت نادری حکومت دی او دده ملګری زندان ته واچول ۱٤ کاله ئی دی په زندان کی وساته په پای کی ئی په زهرو مسموم او شهید کړ .

**انا لله وانا الیه راجعون**

# سید حسن پاچا

د سید حسین پاچا زوی ، د ساداتو پخې کورنۍ ذریه ،دلغمان د چهارباغ د پاچایانو په کلا کې د نیا ته راغلی ، والد ئې سید حسین پاچا تر ۱۳۰ کلو عمر کړی اود هغه له لیکلی سند معلومیږي ، چې د سید جمال الدین افغانی سرد ئې کتلی اودنوموړی د زمانې علمی شخصیت و . « ۱۳۲۰ هـ ش کال کابـــل مجـــله »

سید حسن پاچا د دینی رواجی علومو د مبادیو زیاته برخه له خپل پوه فقهی والد سید حسین پاچا او نوره د محل لـه تکړه علماء تر لاسه کړیده . عصری علوم یې په اکادمیک ډول په پوځی برخه کی تر سره کړیدی ، بیا یې د ننگرهار د سمت مشرقی تنظیمه ریاست په پوځ کی د لوړی افسر په توگه ، د اروا ښاد محمد گل مومند تر اداری لاندی ، چې نظامی مشر و په کار پیل کړیدی.

سید حسن پاچا « شیون » تخلص کاوه په دینی کافی معلوماتو او عصری پوره پوهه سربیره د لیکوال او هم تکړه شاعر و.

د قومولۍ – پښتونولۍ او تولنیزی ربښتینولی زده کړه یې ، د محمد گل مومند له فکری مدرسی تر لاسه کړی ، خورا زیرک او زړور افسر و.

سید حسن پاچا ، د لوړی پوهی او سالم تدبیر په برکت ، په پوځی برخه کی ، د دفاع وزارت د معین « لوی درستیز » مقام ته رسیدلی ، چی د پوځی مورال د ساتلو له مخي یی هری برخی ته کلکه پامرنه کوله . د د یو مؤمن پوځی ، په هیواد

مین شاهین اود لوړ مورال سرلښکر په توگه غوښتل ، په ملک کې داسې اسلامي ، علمي او زړور پوځ وروزي چې له هغه د ملک د څلور خواوو او سپنیزه کلا جوړه شي ، دغه شان ئې د وخت د غوښتنې له مخې هڅه کوله ، چې ټولنیز نظام له موجوده سر در گمې ، چې نه پوره مذهبي او نه غیر مذهبي و ، وباسي څو پوره او سوچه د قرآن « الهي قانون » او سننو تابع اسلامي نظام شي . ځکه یې د وخت ټولواک ته د یو اصلاحي پروگرام وړاندیز وکړ . چې په هغه کې غټې خبرې داوې :

۱ - د نوې اسلامي تعلیمي نصاب له مخې دې د مدرسو له لومړۍ ټولگې تر دولسم پورې اسلامیت ، عربي ، پښتو او یوې دریمې بهرنۍ ژوندۍ ژبې تدریس حتمي شي .

۲ - د پوځ د مورال د لوړولو او حرمت ساتلو لامله ښائي افسرانو ته د وخت له شرایطو سره برابر وړ حقوق تعین او د هستوگنې د مناسب ځای بندوبس وشي .

۳ - د پوځ افراد ښایي له پوځي روزنې پرته نورو چارو ته لکه د افسرانو نفر خدمتي ونه گومارل شي .

٤ - د پوځ د پوځیانو د روزنې مدارس باید جلا او په سر کې ئې د ديني مطالبو ته ځای ورکړ شي .

۵ - د پوځیانو یعنې پوځي افرادو یونیفورم ښائي ستره او سوچه وي ځکه پوځ د قوم عزت دی ، مبتذل ، مندرس او خیرن یونیفورم د ملک او قوم عزت تویوي . د ملکي کارمندانو ته هم د ملي یونیفورم ټاکلو وړاندیز کړی و ، او د اروپائي فیشن او صلیبي یونیفورم کلک مخالف و .

سید حسن پاچا سلطنتي استبدادي نظام او د هغه دکتاتوري کردار بې پاینبته

او زیانمن ګانه ده ویل رعیت د تولنیز نظام د مشر د بجیانو په شان دی ، نو څنګه چی پلرونه د بچیانو د سبا ژوند بندوبس د مخه آن د ماشومتوب په وخت کوی ، دغه راز اسلامی اصول - قرآنی لارښوونی چی په وحدانیت ، رسالت وفا ، رحم او حیا کی نغښتي دی . د اسلامی نظام بنیادی ستنی ، د افرادو داخلاقی کردار ، دعدل او انصاف محک ګڼلای شی.

په کومه ټولنه کی چی په هر وخت ، دهری پوښتنی یا پیښی ځواب ورکوونکی اصول او ضابطه یا دجرم او سرغړونی د سزا حدود نه وی موجود ، هلته عدالت او انصاف خوار او قانون تش په نامه وی.

دغسی ټولنه کی نه یوازی د افرادو ، قوموا وملتونو وحدت نشی تر سره کیدای- بلکی دبی نظمی ګډوډی حتی ټولنیز بهیر په ټپه دریدل هم ممکن دی.

دده ویل اسلام هغه منل شوی هر اړخیز مدرن نړیوال پلات فورم دی چی د ټولو حوادثو او پیښو لاینحلی غوټی پری خلاصیږی . دده آزادی د انسان طبیعی او فطری حق ګڼی خو د هغه ساتنه ئی د اسلام له قوانینو پرته ممکنه نه بلله .

نو ځکه واکدارته په کنایه کی وایی :

د کورنی مارغه په شان به څو ژوندون کړی

د شاهـــین پــه دود آزاد الـوتـل زده کـړه

د خــزان لـــه غمـه ولــــی نــه غـــورېږی

غوټی شــنه شه خنــداتو کــل زده کــړه

دا هم د وطن په مینه کی دهغه د مخمس یود برخه :

## وطنـــه ځـــار وطنـــه

**مړی کفن نلري ، ژوندی چپن نلري، تارو سوزن نلري - خپل اغوستن نلري**

**د اجنبي په کالو ستا ډول وسینګار وطنه !**

## وطنـــه ځـــار وطنـــه

خودغه وړانديز د وخت د سلطنت حوصله وچوله ، انفجاريي وکړ ، سيد حسن پاچايي معزول او په شير پور کی بندی او بيا يی په بنديخانه کی په زهرو شهيد کړ.

**انا لله وانا اليه راجعون**

## ۱۵ - دوکتور عبدالظاهر سهاک :

دمیرزا عبدالقادر زوی ،چی دینی علوم یی ، دکابل چوب فروشی په جومات کی ، له مولوی زاهد صاحب نه دعصری زده کړی سره سم تعقیب کړی او ، ددینی علومو له مبادیو نه د استفادی په برکت یی عصری زده کړه دومره اوچته شود ، چی دمرکز په عصری مدرسو کی ئی سیال نه درلود .په همدې وجه دوخت چارواکی دعصری لوړو زده کړو لپاره امریکا ته واستاو . دده « ۱۳ » کاله دحقوقو اوطب دود پوهنځی ولوستل او له دواړو یی « په سیاست اوطب کی »د دوکتورا سندونه ترلاسه کړل.

دوکتور عبدالظاهر سربیره په ستره دینی طبی اوسیاسی پوهه د ښو اسلامی اخلاقو او افغانی خویو نمونه و. دده دځوانی پخپل دیارلس کلن اروپایی (امریکایی) تحصیلی ژوند کی ،سیګار الکول او داسی نورو نیشه یی عبث شیانو یاڅیزونو ته ګوتی ندی وروړی . دغه راز دوکتور عبدالظاهر شپیته کاله په یو نکاح بسنه کړی اود ښه ضبط النفس خاوند و . د ژوند تر پایه یی روغتیا ئی حال د غبطی وړو ، دده په لباس کور ، جاګیر هیڅ ویاړندی کړی ، اوچی مړ شو په کور کی یی له عادی خرڅ زیات څه ندرلودل.

د دوکتور عبدالظاهر ځانګړتیاوی : دی له شرعی خوراک پرته په

هیڅ څیز معتاد نه و. ډیرکه لوی ډاکتر، یا د روغتیا وزارت نایب یا یی وزیر یا د پارلمان ( شورٰی)، مشر یا وزیراعظم (صدراعظم) ،وه پدې تولو احوالو یامراحلو کی یوه حبه یا پیسه شخصي استفاده نه ده کړی، بی ځایه ، عبث ، توکی تکالی یی نه دی کړی ،قهر ، غصه له چاسره یی ضد عناد نه درلود ، هرچا ته یی په درنه سترگه کتل او د روند شخصیت و.

وایی په (۱۳٤۳) کال کله چی له لغمان څخه پارلمان ته د وکالت امیدوارو، غلام حسن صافی هم په دغه حوزه کی کاندید و. ددوی د اوتونو اچولو په یوه ورځ عجیبه پیښه وشوه. او هغه داسې کله چی غلام حسن صافی د دوکتور ظاهر د درایو په صندوق د خلکو د رایو رش ولید، دوکتور ته یی د طنز له مخی وویل:

ډاکتره! اوس یی لکه چی د ملایانو په شان په کوډو گټې!؟ تعویذونه ورکوی؟!

دوکتور په سړه سینه ،پسته ژبه او آرامه لهجه داسی ځواب ورکړ. ته هم چانس لری، که زه ناروغانو ته نسخې لیکم. ته شتمن یی هغوی ته د دوا د رمل پیسی ورکړه. کیږی چی رایې در ته واچوی.

- وایی ظاهرشاه د افغانستان خلع شوی پادشاه به چې له هیواد نه بهر یاد هیواد په دننه کی لرې سیمو ته د ځو ورځو له پاره سفر کاوه، نو کورنی دوکتور، ملک الشعراء او رحیم پنجشیری « غلام بچه » به یی ملگری وو.

هغه وخت چی خلیل الله خلیلی ملک الشعرا او دوکتور ظاهر د ظاهر شاه

فامیلی دوکتور دی ، ظاهرشاه هرات ته په خاصه الوتکه کی له دغو دروتنو ملگرو سره پرواز کوی. په الوتکه کی عادت دی چی سپرلی به په کومه کرسی چی ناست وی په چرمی تسمو تړل کیږی ، دوی هم ځانونه تړلی وو .خلیلی چی شاعر ، ادیب دی ، خبری اوکلمات یی ترسخت کنترول لاندی دی. هیڅ عادی اووچ الفاظ نه کاروی. خو کله چی الوتکه د کندهار شاوخواته رسیږی ، په دغه مهال . یوناڅاپه دخلیلی له خولی دا کلمات « ازمه تنگ اس ناراحتم » راوزی دوکتور پوهیږی چی **استاد نه** خبره وشړیده ، نوبادشاه ته یی داسی وویل: خاطرشریف اعلیحضرت عرض استاد را استماع فرمودند ؟؟؟

**پادشاه وویل** : استاد حالا باید حوصله کرد ، چه فرصت گشایش رابزودی نمیتوان یافت .

دوکتور عبدالظاهر د ښه صورت ، سیرت ، طبیعی مزاج ، آرام فکر خاوند و. له هیواد و نه ووت د مرک تر ورځي په کور ناست و. هیواد پال مومن اوبی بده شخصیت وه . دده له کمونستانو سره راشه درشه ندرلوده اونه یی لکه نورو غوندی د چا خبره دخیرات په خوا کی لوبی کولی ، دهیواد صادق ،اخلاصمن طبیب اوسیاست پوه فرزند وه. په ۱۳٦۲ کال کی وفات شو . انا لله و انا الیه راجعون

## ۱٦ - عبدالکریم حکیمی :

دعبدالحکیم سناتور زوی ، د چار باغ د ښار گوټی د یوې شریفی قلم په لاس

کورنی فرزند دی. پلار ئې خپل زوی عبدالکریم حکیمی پالنه ، له عصری مدرسی دمخه په کورکی یوه دینی، ادبی او اخلاقی منشی ته سپارلی چې هغه ئی د قیقه پالنه کوله ، حکیمی ددینی علومو او دری انشاء دمبادیو په اخستو عصری مدرسی ته وسپارل شو. کله چې له بکلوریا (۱۲) ټولګی فارغ او دلوړو زده کړو له پاره ، بهر ته استول کیدده ، هم ملا هم میرزا او هم سیاست پوه و، حکیمی له دغسی هراړخیزی تعلیمی رغونی په استفادی، لوړی زده کړی تر لاسه کړی، اودهیواد په هر څه پوه ، هیواد پال شخصیت راستون شو، د وخت د دولت زیاتو اداری ، مالی حسابی او اقتصادی خدمتونو له عهدو په ښه توګه وتلی ټکړه حساب پوه اداری ماهر دی. حکیمی سربیره پر نورو دولتی چارو د مالیی وزارت چاری له اداری ، مالی او حسابی سالم سیستم سره سمی تر سره کړیدی. وینی یې له کمونستانو سره جوش ندی خوړلای او د الحاد د طلسم تر نفوذ لاندی ندی راغلی.

## ۱۷ - عبدالعظیم غریب نواز :

دلغمان د چار باغ ښار ګوتی دیوی صوفی مشربی کورنی فرزند دی چې لومړنی زده کړی یې زیاتره له آزادو مدرسینو په دری ادب او دینی رشتو کی تر لاسه کړی ، غریب نواز دښی پوهی او فطری استعداد په وجه دسیمی وتلی، تنکی علمی هستی وه، چې په لغمان کی ئی د وخت عصری ظروفو، علمی هیلی نشوی خوندی کولای، نو ځکه یې دخپلو هیلو د تر سره کیدو لپاره کابل ته رجوع

وکړه ، هلته ئې چې په زړو جامو کې چا لیاقت نه لیده ، که هرڅو یې د معارف په

لیلیو کې د ګډون هلې ځلې وکړې ګټوری واقع نشوی ، پوځې مدرسو ته یې مخه

کړه ، د زیات اصرار او پرله پسې غوښتنو او مراجعو په نتیجه کې پوځې احضار یه

کې ومنل شو . د ښه استعداد زیار او زحمت په اثر د سیالانو د ډلې غوره زده

کوونکې وګڼل شو. او کرار کرار یې خپل تعلیمي مدارج تر حربې پوهنتون په لوړه

درجه پای ته ورسول ، لکه چې د ښو اخلاقو ، زیاتې پوهې لیاقت او کفایت په

نتیجه کې یې ځان د فواید عامې وزارت مقام ته ورساوه . عبدالعظیم د هیواد

متدین . شریف افغان خدمتګار دی چې سره د دومره زیاتو خدمتو یې بیا هم په

کابل کې له یو معمولي کور زیات څه نلرل . ده د قوای کار قوماندانی هم کړې او

د کندهار قول اردو قوماندان هم و . خو بیا هم تش لاسی او ګزاره کن و سره له دې

چې لو نه یې له کمونستانو سره لاس یو کړ ، او نه له هیواد څخه ووت د افغانستان د

بری په لومړی کال ( ۱۳۷۱ ) په کابل کې وفات شو (انا لله و انا الیه راجعون )

## ۱۸ - سید مسعود پوهنیار :

دا د میر سید قاسم ، افغان معارف پلار ، یوازنی فرزند دی. د اسلامي علومو

مبادی یې د خپل عالم « په هر څه » پوه پلار له زره او دماغه تر لاسه کړې ، بیا یې

عصری مدرسه هم ترڅو تولګیو تعقیب کړی خو د زمانی دنا خوالو له مخی هغه هم داسی چی: دعصری مدرسی په منځنیو تولګیو کی و، والد صاحب یی، دنادرشاه دقتل په تور دسولی تر پای ورسول شو، خو وروسته د فیض محمد زکریا د وخت د خارجه چارو وزیر په شفاعت له سولی بچ او په اووکلو بند محکوم او زندانی شو.

«پوهنیار» هم دد غه تومت له ویری له مدرسی ګوښه او د عصری زده کړی لاره پریښوده، او دخپلی عالمی والدی په مرسته یی خصوصی دینی او عصری معلومات بشپړ کړل.

«پوهنیار» د خپل عالم، پوه او مدبر والد په شان خورا متدین، اخلاقی، د ښو او ګټورو معلوماتو خاوند و، لومړی پښتو تولنه کی د لغاتو د مدیر په توګه، بیاد قطغن ورځپانی مدیر په حیث وروسته د خارجه چارو په وزارت کی سیاسی مدیر، بیا د سرحداتو «قبایلو» وزیر او په پای کی په ایتالیا کی د افغانستان د سفارت پوړی ته ورسید. سید مسعود «پوهنیار» د روان کال په پسرلی کی وفات شو. (انا لله و انا الیه راجعون)

## د قرغيو ولسوالى سيمى پرون :

موږ پرون هم د قرغيو ولسوالۍ اودهغې « روسيي تيرى ځپلى » د وړې دوړى له ننګ پيغور ډک چاپيريال ليدلى او اوس هم د قوم ولس، اسلامي امارت ، د شريک پت ، غيرت « دستار » هسکه شمله وينو. موږ ددې « روسيي جګړى ځپلى » کربلا ، دغه ننني امارتي روغ رمټ ، سرکونه پرون داسي ، کنډکپر ليدلى چي يو ځل ځوک دګاډی په سپرلى پرې تير شوى راتير شوى ، بيا د سيرم له اخستو پرته ندى رغيدلى . موږ پرون د سيمي په کليوکى ، د يو داسي عجيب عمل اوحيرانوونکى پيښى ، شاهدان يو ، چي هلته د لارواوسرکو د نشتوالى لامله کروندګرو ورونو دخپلو غلو دانو په خورو پروړى اوشولو وښو په سوو ګيډيو ته د نه خرڅيدو « خرڅلاو لپاره له کلى نه بهرته په وړلو د نه توانيدو » له کبله اورلګاوه اودايرو ډيرى يى دسرې په دود کروندوکى شيندلى. دغه د بزګرو دخواريو يوه برخه دګونګتيى اوولاړو اوبو په څير وه ، چي ځاى په ځاى ورستيدى او وچيدى .

ښوونيزى چارى : پرون دتعليمى نصاب زده کوونکو ته په عصرى مدرسو کى دلمانځه اداب ښودل . دغه راز په عصرى مدرسوکى ددينى چارو د مباديو او اسلامي سلوک ، اوکردار بيان ، تر ډيره حده نه و ، شاګردان له دغه مهم

حیاتي او ضروري چارو ناخبر وو. زده کوونکو هم د عصري زده کړې غیر دیني مطالبو ته ، په دیني مطلبو ترجیح ورکوله . دا ځکه چې لیک لوست او مدرسه دانسان د رزق یوازني وسیله ګڼل شوې وه . او د ژوند واقعیت او حقیقت سره آشنا نه بریښیدل ، معلمي او ښوونه تر ټولو آسان شغل و ، چې په تور او سپین به پوه شو اوبل ځای به یې کار ، ونه موند ، نو معلمۍ ورته د چا خبره ناري وهلي چې راشه دلته یم ، د څه لږې پوهي او معمولي ګپ شپ څخه خبر و ، قلم په لاس کسانو ، خو معلمي نه خوښیده او د دولت په چوکات کې ، تر دې بله خواره او کمزوري چاره نه وه . دوخت چار واکو هم دخلکو د تیر ایستنې لپاره د آبادو او سمو سیمو په ځای په غرونو کې بې درسي متونو او ښوونکو ، پر له پسې عصري مدرسي پرانیستلې ، او همدا دلیل و ، چې د هیواد معارف خپل کیفیت له لاسه وایست او د عمومي پوهي کچه ډیره ټیټه شوه ، او نوې نسل په ډیره اساني د خپل کلتور ځای پردي کلتور ته پریښود او ځان یې په نورو کې ورک او محو کړ.

مدرس ،کورنۍ او زده کوونکي ***زیاتره*** یوازې د لیک لوست او طبعیاتو د زده کولو په هڅه کې وو. دینیات او اخلاقیات ټول **له** مال او ثروت **سره په پوه نه کې** ښکاریده ، ویل یې انسان باید د عاید او ګټې سیالې منابع تر لاسه کړي. دینیات مورږ ته څه راکوي ؟! دې خلکو د مادي ذهنیت له مخې د پوځ په لوړو زده کړو کې د پولیس اکاډمي ، او په پوهنتون کې د حقوقو په پوهنځي سرقفلي ورکولې . هر

پلار او کورنۍ له خپلو بچیانو دا تمه درلوده ، چې ګوندې د زده کړې په نتیجه کې د پولیس مامور ، یاولسوال شي. ساینسي او علمي رشتو ته خو چې یو د زیات زیار غوښتونکې، او بل یې څه شان او ړد مزل په مخ کې درلود .د چا خوښه نه کیده ځکه خلک زرترزره ثمر ورکوونکي کار پسې ګرزیدل. دلته د هر راز ښوونې د شرایطو له مساعدت سره سره د عصري زده کړو برخه ډیره محدوده او په نشت حساب وه .

نادرشاه او داود شاه

د ظاهرشاه د واکمنۍ په ( ۵۰ ) کلنه موده کې ، په دې سیمه کې درسمي معارف مثبت اغیز چې دیوې لیسې جوړول په چارباغ ښارګوټي بل په مندراوړ ښارګوټي او دریم په کاکڅ یاعزیز خان کڅ کې ضروري وه ونه لیدل شو.

دا د قرغیو اوسنۍ لیسه خود سیمې د خلکو د شور او فریاد په اثر دظاهرشاه له خلع ٤ کاله وړاندې جوړه شوې. هغه هم په داسې یوه برخه کې چې دولس له علمي ضرورت او لیسې ته د شاګردانو د تګ راتګ له اسانتیا وو ، سره یې اړخ نه لګاوه .

یو پلو دلیسې د موقعیت ، اوشاګردانو په وړاندې ، له شل تر پنځه ویشت کلو مترو واټن ستونځه .بله په کلیوکې د سرکونو اومناسبو ، مساعدو لارو د نشتوالي تشه ، بله دلارې دواټن دستونځې لا مله په میاشت کې له لسو زیاتې ورځې دشاګردانو حکمي غیر حاضري، بله په قرغیو کې د ښوونکي لپاره د هستوګنې دالحاقیې نه لرلو تشه . لیسې ته دوړ او لایقو استاذانو نه راتلل ، یا نه وراستول

اود ناچاري له مخې پهلوزګارو اومجبورو کسانو ، دمعلم نوم ايښودل ، اود ليسي تدريس کول ، ټول هغه منفي عوامل وچې په پوهنتون کې د قرغيو سيمې دمحصل دونډې نتيجه د چاخبره په غوايي کې غدود هم نه وه .

روغتيائي برخه :

په سيمه کې روغتيايي چارې دښوونې له چارو هم ډيرې بيرته پاتې وې هغه دچاخبره په طاق نسيان کې وې.

دظاهر شاه په ټوله نيمه پيړۍ واکمنۍ کې دقرغيو په ولسوالي کې دډکتور اوروغتيائي کلنيک څه پته نه لګيده ،که په وروستيو کلو کې د زمانې له شرمه يادتش په نامه روغتيايي « هيواد شموله » پروګرام له مخې کله چې ظاهرشاه له خداي پاماني پرته له هيواد څخه ووت په قرغيو ولسوالي کې يوکنډر هم جوړ شوي وي. ،د داودشاه تروخته يې ، عصري دکتورندرلود .د ولس خلک دخداي (ج) په هيله ناست وو . د « شرې، کووې » ستنې مياګانو وهلې . د ټټر -وچکې - زيړيو تبو ، دناروغتيا دوا درمل له پاره له نايانو دشاخک لګولو يا وينې ايستلو په وسيله کاراخستل کيده . دغه راز شمکې ، چمبړخيال . توره ،زيړه اريړه - پيچ پلې خلاص پلې دکيډې دناروغيو له پاره ،هنجه ، زول ،ترخه ، باديان ، سپيرکې د چنجو او خوږه وله . شين شوبې ،مالګه اوغنځ يې دستونې ، سينې لپاره کارول . بادبرک -مانو سپيلنې يې دنظر دوچولو په خاطر استعمالول

## په شته ځمکو، او بو امکاناتو کې نا خودکفایي :

لکه څنګه چې د قرغیو ولسوالي سیمه د لغمان ولایت قاعده د کابل - ننګرهار -کنړونو له درې خواوو یا درو لارو د ورننوتلو «کلي» ده. دغه راز د لغمان ولایت تأميناتي مهم بندر هم دی. چې د نورو سیمو پرتله دایروی بڼه، د کرکیلي ښې ځمکې، پريمانه اوبه، پراخې او رشوګانۍ ــــــ په زړه پورې او آزاده هوا لري.

د ساري په توګه :

د الیشنګ الینګار او کابل سیندونو خړې - سپینې او شنې اوبه هم په دغه دایروي کاسه کې تویې شوي، یو له بله اشنا شوي او ښتي راوښتي، په زور زوړ یې، د خپل ارزښت او ښیکړو، نارې سورې وهلي اووهي. خو چا یې د ژوند د ناخوالو ( قحط - لوږې ) نادودو سره سره چغو او فریاد ته، غوږ ندی نیولی، او نا اوریدلي یې ګڼلي. نو ځکه دغه سره زر له لغمان نه خوځیدلی، په ننګرهار ورغلي او اباسین سره غاړه غړې شوي، د نورو به کار شوي.

په داسې حال کې چې نفوس په ډیره بیړه، مخ په پراختیا او د خلکو ورځنی عاید په بیړه مخ به پریوتو او له انډو له په وتوو. د وخت چار واکو د دغو قدرتي امکاناتو د په لاس کې درلودو سره سره، په تیرو پنځوسو ( ۵۰ ) کلونو کې، د لغمان او دغه د یوې طبیعي شتمنې سیمې ( قرغیو ) په ساحه کې د دروسیندونو له

زیاتواوبو څخه نه په لغمان کی دبرښنا دتولید لاره چاره ولټوله ، اونه یی دسرخکانو ، خیروخیلو . میاخان کڅ اوګمبیری د سوو ایکړه ځمکی ، خړوبولو سوچ ، په دماغ کی وچورلید ، چی لږ تر لږه دغو شاړو ځمکو ته دلغمان یا کابل له سیندونو یونهر یا ویاله وایستله شی.نه یی دسیمی د اقتصادی ښګړو لامله دکلیوالو لاروسړوکو په ایستلو ، د یو کلی له بل کلی سره نښلولو ، اود ښار مارکیټو ته د سرک ایستلو تر لاس لاندی امکاناتو نه په استفادی چی د یو فصل په ځای دری آن څلور فصلو حاصل ترلاسه کولو ښه زمینه وه ،ګام اخستی . د قرغیو سیمی ، دتیروبی توپیره ، چارواکو دنادو دو په وجه د قدرتی نعمتونو امکاناتو سره سره د زمانی د یری سړی ، تودی لیدلی ، اولکه پټه خزانه پټه خوله پاتی شوی. څو چې ولس سره ددغه راز نادودو له مخي دغه راز راز ناخوالي پيل شوي.

## افغانان سره پوځ سره د جګړی په ازمیښت کی :

په ۶/ ۱۰/ ۱۳۵۸ کال ، کله چی شوروی سره پوځ د انګریزانو دترخو تجربونه په نه استفادی ، دافغان د تینګار په محک د آزمیښت له پاره دآموسیند څخه د ګیدړ په شان ، دې پلوګراتوپ کړ . لغمان ته یی هم د ګواښ داړی جینکی اولاس راوړد کړ . د سرخکانو د او سپنیزه پله په شاوخوا کی یی له افغان شاه ځلمو سره په مخامخ جګړه کی ، سر په سنګ وواهه اوځان ئی وآزمایه. داسې بُدری یی

وخوره چې هغه دخوشحال خان خبره :

« لا تر اوسه یې ماغزه په کرارندي          چا چې ماسره وهلی سر په سنګ دی »

ځای په ځای ودریدل ، اومخ به درونتې کابل سرک په لیکه د ګمبیري په شاوخوا خواره وارده اودلغمان دقرغیو ړندته ثار وشول . پرله پسې لس کاله یې له دغه ځایه دقرغیو تر اورلاندې سیمه په مرمیو سوری، سوری کړه.

ځمکې یې په ځنګلونو . کلې کورونه یې په کنډوالو او ورانو ویجاړو بدل کړل. ډیری تور سري سپین ږیري ماشومان بې چې دجهاد سنګرته دختو اوتلو نه وو شهیدان ، ثاروي اومالونه یې د تباهی کندی ته واچول.

## ۱۳۷۱ هیواد ته د جهادي شورئ راتګ :

که څه روسان ، او دهغو سور پوځ دجنیوا دجرګې د « اوړو پوزی » په اینبودو له ۱۳۷۱ کال لا دمخه زموږ له هیواده وتلی ، او داخلی پاتی شونی یې هم ، ځان ـ پسې کش کړی وو . چې افغان بریمن مجاهد ولس دجهادي شورئ د « ډالی » ویاړ په اوږه هیواد ته رادننه شو. زیات و کم پنځه کاله یې په ملک کې تنظیمی « چارواکی » وکړه . خوبیا هم د چا پام ددې سیمې نړیدلو کنډوالو نو ، ورانو ویجاړو کورونو ، ځنګل شویو ځمکو . هجرت ځپلو تپې زړونو ته راونګرزید ، اوچا دوروري پتې پرې ونه لګونه .

## ۱۳۷۵ د طالبانو اسلامي غورځنګ په پلوشو کې:

زړونه هماغه شان تپي، کنډرې وراني او روس توپان ځپلي ښې په کې په ځای پاتې وې چې له نېکه مرغه د طالبانو اسلامي غورځنګ لمر راوخوت او د اسلامي امارت مشرتابه، د طالبانو اسلامي تحریک، د ځپلو زیاتو ناوزګارتیاوو په ځنګ- کې، له تنګ لاسۍ سره سره، د یو سم او په زړه پورې اسلامي کړنلارې په غوره کولو، قرغیو ولسوالۍ، زړه دردونکې ښې ته په پاملرنه، د ولسوال په توګه د یو تکړه عالم فاضل هیواد پال ځلمي، د تحریک بریالي غړي، د امارت رښتین وفادار مسوول په رالیږلو د سیمې په ښه (ځیره) کې ښه بدلون راوست. دغه ولسوال، سیمې ته د مثبت خدمت په نیت د امارت، ختیځ زون، لغمان ولایت مشرتابه په پرله پسې ارزښتمنو لارښوونو وتوانید د سیمې له مشرانو علمأ ښیګړپالو سره په ټینګ تفاهم خلکو ته د امارت د ښو هیلو او لوړو هدفونو په څرګندولو ټول خلک پخپله خوښه د امارت له مسؤولانو سره، د قوم ولس د هوساینې، او اسلامي امارت اهدافو د تطبیق له پاره یو موټی، یو اواز او یو فکر کړي. لکه چې ټول و د دغې سپیڅلې بلنې په هر کلي، په شریکه د ولسوالۍ د مشرتر پاملرنې لاندې د سیمې د بیا جوړونې، رغونې او امارتي اسلامي مقاصدو په ترسره کولو کې د پوره ونډې اخستو په خاطر د قرغیو ولسوالۍ «روسیې تیرې



د اسلامي امارت د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ نوې ودانۍ

ځپلي » وراني ويجاړي ودانی دبيا ودانولو ، امارتی سرکونو رغونی . په کلی کورکی داقتصادی ،روغتيايی او روزتيزو ښيګړو رامنځته کيدو لامله دنويو لارو اوکليوالو سړکونو ايستلو . ددينی اوعصری مدرسو جوړولو له پاره چارباغ او مندروړ ښار ګوټو اونورو کثيرالمجتمع کليو کی زرتر زره دځای اوامکاناتو د زمينی برابرولو د روغتيايی کلنيکونو د پرانستلو دامکاناتو ، برابرولو او ورسره دانسانی مالی مرستو کولو ژمنه وکړه چی د ولسوال په مشری سملاسی داسی لاس په کارشول:

الف : قرغيو ولسوالی دورانې ويجاړ ي ودانی بيا جوړونه رغونه:

د قومی او امارتی ګډې کرنلاری له مخی اودجهاد پال ميړنی مومن ولس په عمومی اود سيمی د ښيګړپالو پانګوالو په خاصه او له خلوص ډکه مالی بسپنه اوطالبانو ګران ځواک ـــ په زړه پورې شريکی انسانی مرستـــی د پرلـه پسی هلو ځــلو پــه پای کی له ( ۱۰/۱/ ۱٤۲۰ ) ( تر ۳۰/۸/ ۱٤۲۰ ) نيتې دمحل ګډ ځواک وتوانيد چې له (۸ ) مياشتو په لږه موده کی د ( ٤۰۰ ) متره مکعبو په اوږدو او ( ٤ ) متروپه لوړوالی يو انګړ چی په هغه کی له پخو موادو د « ولسوال ، ماليی ، املاکو - علماوشوری اوامنيت، ادارو له پاره کوټی ودانی کـړی اوقرغيو اداری واحد مشرتا به ته داستفادی په خاطر و سپاری .

ب : په کليوکې د ليږد ولو راليږدولو ، د لارو سرکونو پرانستل:

دقومي او امارتي کړنلارې له مخې په دوهم پړاوکې ، د سيمې د خلکو اوامارت د ګډې مرستې په اثر دسرکونو په پرانستلو لاس پورې کړ شو. چې له کال نه په لږه موده کې دغه لاندې لارې اوسرکونه جوړ شوي اوپرانستل شوي دي.

۱ - د سرخکانو له پله راکښته ، دعبدالرحيم زيود کليو په ځنګ ،ځنګ کې ،د بولان په برید ، مخ په (دره لام )کلي اوله هغه د کمال پور په سيمه کې د کوز او برکمال پورتر منځ ، ترنګ کلي ، ميرعلم کلاڅخه مخ په نوده مره (لړه موړه ) توروکلا ، اغراباد سيمه کې ،آن د بي بي صاحبې ، اوقومي اديرې په ځنګ کې د ګرګ د کلا په برید ،دمندروړ ، قرغيو له امارتي سرک سره جوخت ،د ۱۵ کلومترو په کاره واره واټن کې سرک ، چې په (۱۳۵٤) کال د عبدالقادر قاضي د ولايت په مهال يوه ليکه ياکرښه ايستل شوې وه اوپه وروستيو کلو کې ړنده شوې او له استفادې وتلې وه ، د امارت په وخت دولس اوقرغيي ولسوالي واحد مسوولانو په ګډه مرسته بيا جوړه او ورغول شوه او تله راتله پرې پيل شوي وي .

۲ - له فرمانخيلو نيولې د بر اوکوز اندور په ځنګ ځنګ کې ، دمياخيلوبلوچ آباد په بريد ،مخ په شيروکلا « نور »کمال پور پورې په ۱۳۵۵ کال د محمد حسن ګرديزي د ولايت په مهال د ٦ کيلو مترو په اوږدو د عبدالرحيم زيو له کرښې سره جوخت يوه نرۍ ليکه ايستل شوې وه چې په وروستو وختو کې دغه ليکه ورانه



د اسلامي امارت د لغمان ولايت د قرغيو ولسوالۍ د ودانۍ منځنۍ برخه

ویجاړه شوی ،له کار وتلی وه .د امارت په وخت دولس اوامارت مسؤولانو په شریکه مرسته بیا ودانه او ورغول شوه چې اوس پری خلک تګ راتګ کوی

۳- د مند روړ له امارتی سرک نه مخ په سهیل د "کوتی حیدر بابا" د زیارت په لوری ،دارباب کلا ،جنګریز کلا ،امیر کلا ،شنګنا په سیموکی مخ په چهار- کلاد (۵) کیلومترو په اوږدو نوی سرک جوړ ،او دبلوچ آباد په سیمه کی د فرمانخیلونه را جلا شوی کرښی سره نښلول شویدی.

٤ - د عبدالرحیم زیوکلیو دلړی په څنګ څنګ کی دکابل سیند په قطبی غاړه غاړه دحسین آباد او سنګیړی کلیو په برید د الشینګ.الینګار. کابل سیندونو ترمصب د (۱۵) کلیومترو په واټن کلیوال سرک دامارت اوولس په شریکه مرسته نوی ایستل شوی او استفادی ته برابر شوی دی.

۵ - د سواتیو له کثیرالمجتمع لوی کلی نیولی مخ په چارباغ ښارګوټی ،اودغه راز ،له سواتیو مخ په قرغیو ولسوالی ،د دهاندر په برید اود شاوخوا کلیو په غاړو څندو د (۱۵) کیلومترو په واټن سرک دخلکو او امارت مسوول واحد په مرسته نوی ویستل شوی او استفاده تری پیل شوی ده.

٦ - د چارباغ - قرغیو امارتی سرک څخه ،دسرفراز خان دکلاپه برید ، مخ په سهیل کلیود پنځه کلومترو په واټن سرک د امارت د مسوولانو اوولس په مرسته نوی ودان او پرانستل شوی چې استفاده تری پیل شوی ده.

۷ - د چارباغ ښارګوټي نه مخ په سهیل لویدیځ د ٦ کیلو مترو په واټن د الیشنګ -الینګار د سیندو تر مصب د کلیو په څنګ، څنګ کې نوی سرک کښل شوی استفاده تری شروع شوی.

۸ - د عزیزخان په کڅ کی، د کابل ننګرهار عمومی سرک ــــ، مخ په قطب د کابل سیند تر اوبو، (٦) کیلومتره نوی سرک، د امارت مسؤولانو او خلکو په مرسته ایستل شوی او استفاده تری پیل شوی.

۹ - د کاکڅ له فرمانخیلو تر کوز کاکڅ پوری قومی سړک د امارت د مسوولانو او د سیمې د خلکو په مرسته د (٤) کیلومترو په اوږدو نوی ــــ ایستل شوی او استفادې ته برابر شوی دی.

## ج: د سیمی نننی پوهنیزه بڼه:

د قرغیو ولسوالی زیاتره او سیدونکی پښتانه او لږ یی نورستانی او پشه یی ژبی ورونه دی.

چې تول له هر څه زیات، په علم او پوهې مین او ددغی ملغلری، د ترلاسه کولو لیوال دی. ځکه اسلامی امارت سره له زیاتی ناوزګار تیا او تش لاسی تر ټولو د مخه د غه ټکی ته پام لرنه، د ولس په مرسته د دوو کلو په منځ منځ کی دغه لاندی عصری او دینی مدرسی پرانستی او فعالی کړیدی:



د اسلامي امارت د لغمان ولایت، د قرغیو ولسوالۍ د مالیې او املاکو خونې

## د ینی مدرسی :

۱ - د کندې کثیرالمجتمع (لوی کلی) مدرسه چی شعاع یی ترحسن خیلو ،خروټو ، مشی خیلو اومندروړ ،فرمانخیلو صفوخیلو پوری رسیږی .

۲ - قرغیو ولسوالی مدرسه : چی شعاع یی هوتخیلو ،کوز اوبر کمال پور ، چهارقلعه میاخیلو نور ، بلوچ آباد بولان پوری رسیږی .

۳ - دسرفرازخان کلا مدرسه : چی تر شپږ کیلو متروچاپیریال تری گټه اخیستی شی.

٤ - دعزیزخان کڅ مدرسه .

٥ - دکاکڅ مدرسه

## عصری لیسی :

**۱ - چهارباغ لیسه :** چی له سواتیو نیولی ، د چارباغ تر ( ٤ ) کیلو متری شاوخوا کلو بانډو بچیان په کی زده کړه کوی

**۲- مندروړ لیسه:** چی له کله کوټ ، مشی خیلو ، کندی ، خروټو ، دوپی ملتیک لوگر لام نیولی تر صفو خیلو ، فرمانخیلو ولس ، تری برخمن دی ▪

**۳ - عزیزخان کڅ لیسه :** چی د هغه ځای شاو خوا کلیو بچیان په کی زده کړه کوی

٤ - **کاکړ لیسه :** چی شاوخوا کلی تری استفاده کوی

٥ - **سرخکان لیسه .** چی عبدالرحیم زئی ، گلــه خیــل ، کــریم اباد او وریاـ خیـل تری گټه اخلی.

روغتیا د ژوند د بریو بری : پښتانه وایی روغ ځان پاچاهی ده . رښتیا وایی چی ځان یی روغ وی سړی هرڅه کولای شی اوهرڅه د روغتیا تابع دی. چی روغتیا نه وی هیڅ هم نه وی اوهیڅ نشی کیدای. په تیره بیا لغمان قرغیو سیمی په ډنډو کی ، چی د ملاریا ، زیړو تبو ، محرقی وچکی ستړه وه .د اسلامی امارت په وخت د عمرانی اوروزنیزو نوښتونو په څنگ کی ، روغتیایی بریاو ته هم پوره پاملرنه شویده . د ساری په توگه د غه لاندی کلینکونه سره له ټولو ستونځو د سیمی په کثیر المجتمع (لویو کلیو ) کی ځای په ځای شویدی:

١ - دقرغیو د متروک تش په نامه کلنیک بشپړ کول او فعالول .

٢ - دغه مرکزکی د سترگو د نوی کلنیک زیاتول او په کار اچول .

٣ - په چار باغ ښار گوټي کی د عمومی نا روغیو د تداوی پراخ کلنیک فعالول

٤ - مندروړ ښار گوټی کی د عمومی ناروغیو د ارود رمل کلنیک پرانستل .

٥ - د عبدالرحیم زیو په کثیر المجتمع کی د پراخ کلنیک جوړول .

٦ - کاکړ په کثیر المجتمع کی د پراخ کلنیک پرانستل .

٧ - قرغیو په ولسوالی کی د خارویو د کلنیک رغول فعالول.

## دکلیو د شوراگانو جوړول

له نیک مرغه د (۱٤۱۹) کال، په ورستیو، او (۱٤۲۰) په لمړیو وختو کی د قرغیو د ولسوال په توگه، دمولوی فضل الله خادم مقرری، داسلامی امارت، د ښو هیلو اوهدفونو، دځرنگوالی، دځرگندولو، په ترځ کی، د محل دښیگړو اوهوساینی، دتامین په خاطر، دقوم، ولس دتحرک ښه وسیله شوه ■ محترم مولوی خادم، ترهرڅه لومړی، دخلکو یووالی اودغه عالی مقصد ته، درسیدو عواملو ته په پاملرنه، دمحل له خلکو سره په کلی، کورکی، له لیدو کتوورو سته په هره بانډه اوکلی کی دجومات دامام په مشری، د ښی سابقی، څوتنو «خیر پوه» کسانو، په گډون، لومړی، د «کلی شورئ» تر دغه هدف لاندی جوړه کړه :

«دلوی خدای (ج) د احکامو په رعایت دمحمد (ص) شریعت، په انفاذ دخلکو ترمنځ دهغه زړه بداوی تخم، چی دتیرو تفرقه، اچونکو نظامونو او رژیمونو له خوا، د ولسونو، قومونو اوکورنیو، ترمنځ شیندل شوی له منځه وړل. دکلی ټول لمونځ کوونکی، جومات ته رابلل، اودجماعت په لمانځه مکلفول - دکور کلی، وړی غټی، لانجی او خوابدی، د شوری له لاری په عدل او انصاف حل و فصل کول. په کلی کی اسلامی اتحاد، رواداری او ورورولی ټینگول. دشوریٰ له توان نه د اوچتو ستونزو دحل په باب، د اسلامی امارت، مسؤلانو سره سلا اومشوره کول»

وروسته یی د کلی د شورئ د محل ستره شوری جوړه او د دغــــی شورئ لومــړی غونډه یی :

په ۸/۱۱/۱٤۱۹ نیټه د ولسوالی د ورانې ویجاړی ودانۍ په جومات کی پیل کړه . په غونډه کی د مولوی فضل الله خادم په نوبت وړاندیز وشو چی په کلی او سراسری محل کی ، د پوره امنیت ټینګولو ، او له ناسالمو عناصرو یی ،د پاکولو ضرورت د کور کلی د لارو او عامو سړکونو ،د وران ، ویجاړ حالت مرمت ، رغونی اوهمیشه ساتنی ته د پاملرنی ضرورت . د عامه ملکیتونو حفاظت او پوره ساتنی ته د کلکی پاملرنی ضرورت ، د افغانستان ختیځ زون ، او لغمان ولایت قرغیو ولسوالی وران ویجاړ ، شوی مرکز ، بیا ودانول او رغول ، هغه لومړی ، ضرورتونه دی ، چی ښایی تر ټولو د مخه ورته د حل لاره پیدا او تر سره شی. شوری په دغه وړاندیز له غور وروسته ،داسی پریکړه وکړه .

**۱ - د لارو ، سړکونو مرمت :** هر کله چی سړکونه او لاری د کلی کور ، د ټولنیزو ، اقتصادی ، روغتیای او فرهنګی ښیګړو د ترسره کولو په خاطر د تګ راتګ ښه وسیله ده ، د محل ټول خلک ،خپله د نده بولی ، چی سملاسی ، د ولسوال اودرنو طالبانو ، په ملګرتیا او پاملرنه هر ، هر کلی له خپلی سیمی ، سره نژدی لاری . سړکونه ،مرمت او ورغوی ، او په راتلونکی کی هم د لارو او سړکونو دساتنی خیال وساتی.

**۲- دامنیت ساتنه :** هغه څه چې د محل ، د سوکالۍ ، هوساینې د سر ،مال ، پت عزت ، په ساتنه کې پوره برخه لري امنیت دی نو ، ساتنه یې د اسلامي نظام تر پاملرنې لاندې د هر فرد ایماني ، دنده ګڼو ، چې د اسلامي اخلاقو ، د لارښوونې له مخې ، بچیان ، ورونه خپلوان ، دوستان ټول ، د اسلامي ورورولۍ، رواداري ،ګډ ژوند ته راوبولو او د اسلامي امارت تر سیوري لاندې ، اوږه په اوږه دورونو په شان خوږ ژوند وکړو.

**۳ - عامه ملکیتونه:** د دغه راز عامه ملکیتونو ساتنه چې د خلکو شریک مال دی زمونږ د ټولو ، شریکه دنده ده ، هغه به د دولت ، تر وروستۍ ،لارښوونې ،د هر تیری کوونکی ، له تیری ساتو.

**٤- دولسوالۍ د مرکز د ورانی ویجاړې ودانۍ بیا ودانول :** دا چې ،دولس ، د عزت ، شمله ، او د پت خیمه ده ، بیا جوړول او رغول یې د ،ولس او حکومت ګډ کار دی. پدغو روانو ، ناسمو شرایطو کی ، ولس خپله دنده ګڼي ، چې پخپله خوښه د چندې (بسپنې ) له لارې د ټول محل وګړي ، په دغه کار کی ، پوره ونډه واخلی ، او دا دسترګو خلی لری کړی. ښایی په دغه ، حاضر مجلس کی ، موجود ورونه ، د خپلې بسپنې ، دونډې ، بیان ورکړی ، او هغه ، په فهرست کی ثبت ، او له حاضرو فعالو ورونو ، یو د شپږ کسیزه ، کمیته جوړه ، او د بسپنې ، د راټولولو لپاره ، په محل او په جلال آباد . پیښورکی د قرغیو ، د مهاجرو ، ورونو نه ، د بسپنې ، په

راتهولولو پیل وشی. جرگی مولوی واعظ صاحب سمیع الله ضابط . قومندان حبیب الرحمن او مکرم خان ، گل پادشاه غلام محمد ضابط . دکمیتی دغړو په توګه وټاکل ، کمیتی دحساب ورکولو ، اوحساب ښوولو ، دبسپنی د راتهولولو لپاره ،کتاب اود بسپني د ، داخلی دسند ورکولو ، پارچی چاپ ، او په بیړه یی په کار لاس پوری کړ. له محل نه نیولی ، تر ننګرهار ، پیښور پوری ، ددغه ښه کار ، د ترسره کیدو په لار کې هلی ځلی ترسره او لازمه بسپنه ، تر لاسه شود ، کمیتی دفضل الله خادم ، په مشری ، وغوښتل پدغو پیسو چی د تهولو لړی یی لا روانه دده ،دولسوالی ، د ودانی کار ، په بیړه سره پیل شی . ځکه ، په دوبی کی ، د تودوخی ، دشدت ، له مخی ، کارونه غړند اود مواد و نرخونه راتیتیږی چی دا فرصت د دې کار له پاره غنیمت دی .

د محل شورئ دوهمه غونډه :

په ۱٤۱۹/۱۱/۲٤ ، نیټه ، دمولوی خادم ، په نوښت دقرغیو په مرکز کی دمحل شوری دوهمه غونډه پیل ، او په هغه کی دکمیتی له خوا د تیری غونډی د پریکړی په تائید ، دمحل اوسیدونکو او په بهر کی اوسیدونکو ، مهاجرو ځخه دولسوالی د عمارت ، دبیا ودانولو له پاره ، دراتهولو شویو پیسو د څرنګوالی ، دځرګندونو ، په پای کی غونډی ته ، ډاډ ورکړ شو که ، سملاسی او ژرتر ژره ، دودانی لازم مواد راتهول اود جوړولو کار پیل شی ، هیله ده چی دا د بسپنی تر لاسه

شوی فعلی پیسی مو ، په دغه لاره کی ، تر یوه مناسب پړاو پوری ، ورسوی . خو سره له دی ټولو خبرو بیا هم یوه خوا ددوبی ځوروونکی تودوخه . بل پلو دخلکو دشولو کرکیلی نازک فرصت بله خوا دنن اقتصادی فرصت ، سبا غیر اقتصادی فرصت ته پرینبودل ، داسی ستونزی دی ، چی نبایی شوری پری دښه غور کولو وروسته ، یوه ګټوره پریکړه وکړی.

شوری له پوره غور او بحث وروسته داسی و پتیله چی هم دفرصت دضیاع مخه نیول شوي ، او هم کروندګر ، له زیان څخه بچ شوی ، او هم داقتصادی هدفونو ترسره کیدل مراعات شوی وی. هغه داسی : هر کله چی قرغه یی څلور حوزی لری د چهار باغ ختیزه برخه . مندرور قطبی برخه . کمالپور . بولان . عبدالرحیم زایی منځنی برخه - کاکڅ ، ګردی کڅ ، سرخکان او عزیزخان کڅ ، لویدیزه اوسهیل برخه ، نودغه څلور ګونی حوزې یا برخې به لس ، لس ورځی . لس ، لس کسه ساده کارګر جې ټول ، سل کسه او څلویښت ، ورځی شی دولسوالی کمیتی ته سپاری ، خو بیا هم دغه حوزې دخپلو چارو ، د آسانتیا لپاره کولی شی چی ، د نفرو په ځای بیه ، اُجرت ، سړی سر دورځی ( ۵۰۰۰۰ ) افغانۍ کمیتې ته وسپاری، چی کمیته پخپله نفر پیدا او په کار یی واچوی. ددغی شوری دپورتنی ، پریکړی په ادامه ولسوال . مولوی خادم . او محلی کمیتی دکار پیل او عنعنوی اصولو په رعایت د اسلامی امارت حتیخ زرن او لغمان ولایت ، دمشرتابه ،د ادارو، داراکینو، په

رابللو، د محل شورى د دريمى غونډى، جوړيدو بندوبس وکړ:

## د محل شورى دريمه غونډه :

په ۱۴۲۰/۳/۱ نيټه د قرغيو ولسوالى، په مرکز کى، د محلى شورى دريمه غونډه جوړه شوه، چى په هغې کې، ختيځ زون، محترم مرستيال، مولوى صدراعظم، دلغمان محترم والى، مولوى محمد اسحق اخندزاده اودولايتى ادارو مشرانو، ګډون کړى وو.

جرګه د قارى مولوى محمد اکرم له خوا د کلام الله مجيد، د څو مبارکو آيتونو په تلاوت، پيل شوه، فضل الله خادم، د قرغيو ولسوال، د محلى شورىٰ، د غونډې، د څرنګوالى، د اسلامى امارت، ختيځ زون، لغمان ولايت تر پاملرنى اوسمى لارښوونې لاندې د قرغيو ولسوالى، له مسؤولانو، سره د اسلامى هدفونو، په ترسره، کولوکى د محل د خلکو، د اوږه په اوږه، بې سارى، ملګرتيا په باب، څرګندونى وکړى. او د بسپنې له لارې د ولسوالى، د دغه وران، ويجاړ مرکز، د بيا ودانولو د تصميم په برخه کى ئى، د قرغيو د مجاهد او مؤمن ولس نوښت وستايه، بيا د اسلامى امارت ختيځ زون مرستيال، اولغمان ولايت محترم والى د مولوى فضل الله «خادم» په نوښت د افغانستان له اسلامى امارت سره «چى د افغانستان مجاهد پال مؤمن ولس د اسلامى هيلو ښکارندوى دى» د قرغيو ولسوالى، مشرانو او کشرانو د اخلاص، ښه هرکلى وکړ، او له اسلامى، امارت

سره یی ددوی اوږه په اوږه ځانی . مالی او اخلاقی مرستی اوفعالیتونه وسایل او زیاته یی کړه :

دغه اسلامی نظام چې په هیواد کی دالله تعالی د قانون حاکمیت اودمحمدی (ص) شریعت دنفاذ په خاطر دهیواد یونیم میلیون نه زیاتو سرښندونکو ورونو بچیانو نعم البدل اوستاسو دهوساینی تر سره کولو په خدمت کی دی. له نیکه - مرغه ځنګه یی چی ګورو تاسو ورونه هم دخپلی اوچتی پوهی له مخی په دغه حقیقت ښه پوهیدلی یاست ، ځکه ختیز زون اولغمان ولایت مسؤلین دقرغیو ولسوالی‌خلکو ته عموماً ، مشرانو ، علماء اومجاهدو ورونو ته په خاصه توګه کورودانی وایی ، او له اسلامی امارت سره ددوی دغه اوږه په اوږه ملګرتیا اومرستی مننه اوستاینه کوی ، ضمناً ژمنه کوی چې تروسه وسه دمالی امکاناتو له مخی دولسوالی په ودانی کی مرسته ونه سپموی.

په پای کی سمیع الله ضابط دکمیتی ،محلی شوری اوقرغیو خلکو په نمایندګی په دغه غونډه کی دختیز زون لغمان ولایت مشر تابه دګډون اودهغوی دمهربانیو په وړاندی دقرغیو خلکو ښی هیلی متقابلا دهغوی حضور ته ورسولی:

مولوی فضل الله « خادم » محترم مولوی صدراعظم ، اودلغمان محترم والی ته د قرغیو ولسوالی دودانی دبیا جوړولو دتاداوډبری ایښودلو وړاندیز وکړ ، چې د کلام الله مجید څومبارکوایتونو په ترڅ کی دغه مراسم ترسره شول.

باید وویل شي چې د کمیټې غړو په تیره بیا ملا محمد سلیم «مجاهد» امنیه قوماندان مولوي هدایت الله د ولسوالۍ مرستیال او ګڼ شمیر طالبانو دودانۍ په کارکې به پرله پسې توګه پوره برخه اخستې، چې د ولسوالۍ په نزد د مننې او ستاینې وړ دي.

په پای کې د څرګندولو وړ ده چې د ولسوالۍ دودانۍ چارې په ۱۴۲۰/۱/۱۰ نیټه پیل او تر ۱۴۲۰/۸/۳۰ نیټې یې دوام وکړ او په نتیجه کې د ولسوالۍ دودانۍ د ٤ متره په لوړوالي د (٤۰۰) متره مکعب احاطې کار بشپړ شوی او د احاطې د ننه د ولسوال، مالیې علمأ کرام شورۍ او د امنې قوماندانۍ د پاره خونې په پخه توګه جوړې او د استفادې وړ شویدي.

## د محل شورۍ څلورمه غونډه :

د محل د تیرو غونډو په دوام، د قرغیو ولسوال محترم «خادم» په پرله پسې هڅو، د محل شهید پال مجاهد ولس له خوا اسلامي امارت سره، له اخلاص او رښتینولۍ ډکې بسپنې په همت په عمومي توګه او په هغه کې د یوشمیر وطنپالو مؤمنو پانګوالو ورونو په مالي ونډه په خاصه توګه، په ۱۴۲۰/۸/۲۸ نیټه د ولسوالۍ د وران ویجاړ تعمیر د بیا ودان شوي تعمیر د پرانستلو د رنه غونډه جوړه شوه. چې په هغه کې د محل علما کرام. او محل شورا مشرانو په غړو سربیره د اسلامي امارت ختیز زون محترم مرستیال مولوي صدراعظم، لغمان ولایت

محترم والي مولوي محمداسحق اخندزاده گډون درلود . جرګه د کلام الله مجيد د څومبارکو آيتونو په تلاوت پيل شوه ، لومړی دولسوالي د بيا ودانۍ په اړه د محترم خادم له خوا د محل شوري د تيرو غونډو د پريکړو او لارښوونو په تعقيب د عملي ګامونو د نتايجو په څرنګوالي له رڼاجولوورو وسته ، د افغانستان اسلامي امارت ختيز زون محترم مرستيال ، د قرغيو ولسوالي د بيا ودانشوی تعمير په خاطر له اسلامي امارت سره ، د محل خلکو اخلاص وستايه ، هغه يې د الحاد له تسلط د هيراد د نجات د لاري د شهيدانو ارواګانو ته د دوی د ښه نيت سوغات وباله د غه راز لغمان محترم والي په هيواد باندې د ملګرو ملتود اقتصادي ظالمانه بنديزد لګولو اقتصادي ناسمو شرايطو سره سره د بسپنې له لارې ، د ولسوالۍ د ودانۍ بيا جوړول ، له اسلامي امارت سره د قرغيو ولسوالي د مجاهد ولس د ميړانې اواخلاص څرګندوی وګڼه ، چې نه يوازې هيواد وال ، بلکې نړيوال يې له اسلامي امارت سره پدغه راز له اخلاص ډک ملاتړ حيران کړل.

ختيز زون اولغمان ولايت مشرتوب د قرغيو ولسوال . د هغه ملګرو طالبانو ، مسؤلانو ، علماء کرام او محل مشرانو ته مبارکي وايي او د دوی د دغه لوړ احساس پوره پوره مننه کوي.

## دافغانستان اسلامی امارت په نوښت دعلماً کرام شورئ نیته لیک :

داسلامی امارت په امر اووزیرانو شورئ په اهتمام ، دولسی ښیګړو دلاسمبالتیاو ښه والی ، دخلکو دستونزو چټک حل او غوښتنو ته مثبت ځواب- دهیواد اداری واحدونو او پرګنو ترمنځ دزیات پیوستون او نژدی تفاهم له امله د ۱٤۲۰ کال درمضان المبارک دمیاشتی په سرکی دولایاتو په مرکزو اوولسوالیوکی دمحل علماً کرام دڅلور تنو : رئیس - نایب - اداری ، منشی په ترکیب د شورا پرانستود ځرنګوالی ، دندو او چلند هراړخیزه کړنلار په یو لنډه خوجامع لایحه کی تنظیم او اړوند ومراجعوته ابلاغ او اعلام کړل شوه .

لغمان ولایت مشرتابه ،د اسلامی امارت ، ددغه نیک - ګټور - لازمی او معقول اقدام په هرکلی ، سملاسی پخپلو پنځه ګونو ، واحدونو « قرغه ئی - الینګار - الیشنګ - ننګراج - دولت شاه اودلغمان مرکز ، مهترلام بابا کی» دمحل اوسیموعلماء کراموته ، فرصت ورکړچی ، دهری سیمی علما پخپلو کی جرګه او پخپله خوښه دشورئ دترکیب لپاره (٤) تنه تکړه ، جید او غوره کسان د محل شورئ د رئیس ،نایب رئیس ، اداری اومنشی په توګه انتخاب او اعلان کړی.

لکه چی د روان کال رمضان المبارک په میاشت کی دختیز زون له نورو ولایاتو سره سم دلته هم ددغه ملی او قومی ښیګړپال ستر ارمان ښه تنظیم ،

«قوم امارت» دنژدې ارتباط مهمه وسیله جوړه او پرانستل شوه . چې موږ دلته له هغې جملې **د قرغیو شورئ ترکیب ، او غړو څرنګوالی ته لنډه کتنه کوو:**

قرغیو سیمې علماء کرام جرګه چې شمیر یې له ٦٠ تنو زیات وو د ۱۴۲۰ کال د رمضان المبارک میاشتې په ٦ مه نیټه غونډه وکړه او په هغه کې یې د سیمې او اسلامي امارت تر منځ ،د اړیکو زیات نژدیوالي او دقوم ، دیني چارو ، اخلاقي امورو او د ژوند د لاښه کولو رغولو ، دخلکو له زړونو د خوا بدیو لرې کولو ،د وروروولي ،یو والي او ګډې مرستې روحیې د پیاوړې کولو له پاره دغه لاندې علماء کرام د شورې په ترکیب کې غوره او مشخص کړل :

۱- مولـــوی محمد طاهر «صـــدیقي» د محـــل علماء کرام شورې د رئیس په توګه

۲ - مولوی سید رحیم تره خیل د شورې د نایب رئیس په توګه

۳- مولوی عبدالواحد د شورئ د اداري مسؤول په توګه .

٤- مولوی اکرام الله د شورئ منشي په توګه

پورتنې شورئ لومړنې غونډه د ۱٤۲۰ کال . د شوال المکرم په میاشت کې دایر ،او په هغه کې د پیژندګلې او د مجوزه مقررې د متن او محتوئ له اورولو وروسته د خطیبانو او جوماتو د ملا امامانو په عنوان ، دغه لاندې متن ، د دندو او دایمي لارښود په توګه صادر کړې شو:

الف: د جوماتونو خطیبان او ملا امامان په ولس کی د علمی او روحانی مشرانو په توگه ، د دینی - اخلاقی اصولو او د خلکو د معاشرتی کړو وړو لارښود او د دوی تر منځ د روحی ضابطی او ورورولئ ټینگولو رغوونکی ، ساتونکی مسؤولان دی، څو په ولس کی د موعظو په ترڅ او وینا او په وخت په پسته لهجه ، خوږه ژبه آرامو اعصابو او طبیعی بڼه مطالب داسی وڅیړی او توضیح کړی :

۱ - مقتدیانو ته له لمانځه وروسته یا په کلی کور کی ، د روغ رنځور پوښتنی یادمړی ژوندی ،نکاح او ښادی په غونډو کی . دفرصت سره مناسبی موعظی ، او ضمناً د ولسی ژوند د کړو وړو اړوند اسلامی پندونه نصیحتونه کول لکه : د سلام آداب او موارد . دخبرو د شروع آداب له کوره د تلو ، دخلکو تر منځ د راکړی ورکړی اداب او اصول . له کور نه د وتو اصول او راتلو اداب . داوداسه اداب او اصول . جومات ته راتلو او ننوتو اداب . په مجلس کی د کیناستو ادب ، دفاتحی او تعزیی اداب . دمبارکیٔ او زیری اداب . دچاد مرگ او مصیبت داوریدو دځواب اداب ، د آذان ورکولو اداب ، د اذان اوریدو آداب ، چاته دخطاب یا آوازکولو آداب دلمانځه آداب ، دلمانځه د سهوی د سجدی آداب -دناستی او ولاړی دلمانځه آداب په کور کی یوازی او په جومات کی له امام سره دلمانځه د ثواب توپیر . جومات ته دجمعی ، لمانځه ته دنه راتلو درخصت سبب او علت ، دجنازی دلمانځه آداب اوځرنگوالی . دجمعی دلمانځه دا صولو تذکار - د اختر لمونځونو . داستسقاً

لمونځونو او نورو ........ اداب ښودل .

۲- د سهار له لمانځه وروسته چې ، شخصي مشاغلو ته لاځه فرصت وي . د قرآن شریف د یو ي سورۍ ، دیوی رکوع تلاوت ، ترجمې تفصیلي تفسیر کول

۳- مازیگری ، له لمانځه د مخه یا وروسته دوخت د ملاحظې او شرایطو له غوښتنو سره سم . خلک حلال کسب ، سم فکر ، روا ، مشروع خوراک او له نا خوالو نا- دودو ځان ژغورلو ، له ناوړه کسانو سره رشته نه تینګولو . په سختیو کې د صبر او حوصلې ساتلو موعظې کول . او وروروليء، عفو ، رحم او حیاء ته رابلل او دیني مثالونه ورکول .

٤- د سود - احتکار - گران پلورنې ، حسد کینې ، بډوډ رشوت ، جوارۍ ، فحشا ،منکر ، سرقې ، قتل النفس شوکې ، گنکړې ، دوکې ، فریب ، سحر جادو د غندنې په باب مدللې علمي موعظې کول .

٥ - د ملي او امارتي شریکو گټو لکه : مدرسې جوړول ، لارو او سړکونو جوړول ، کوهي ایستل ، جامع جوماتونه جوړول . ورانو او شاړو ځمکو ته په شریکه داوبو برابرولو بند ویس کولو ته بې هڅول .

د هیواد ، ملک په شریکه دفاع کول .

٦- کلې کور کې نامطلوب عناصر ، نه پیژندل شوی اشخاص . بدکار او بدفعله کسان نه پرینښودل او ځای نه ورکولو په باب تصلي خبري کول .

۷ – دکور کلی لانجی ، خوابدیه، حقوقی اختلافونه ، وړی غټی ناخوالی ، دکلی دمشرانو په ملګرتیا په روغه جوړه حل و فصل کول ـ دلانجمنو او لویو چارو تفصیلی راپور دمحلی شورئ له لاری دامارت دمحل اداری مسؤولانو ته راجع کول اوحلول ـ او داسی نور ...

ب – د محل علماء کرام شورئ به په عادی حالت دهری میاشتی په سر یا پای کی غونډه کوی او د سیمی خطیبان او ملا امامان به شورئ ته دخپلو دندو او نویو موضوعاتو راپورونه وړاندی کوی او لازم لارښود تر لاسه کوی ـ

واخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین



په لغمان کې د امیر حبیب الله شهید د ژمني پلازمېنې ماڼۍ



په لغمان کې دقلعة السراج (سلطنتی ماڼۍ) دوهمه برخه

# د لغمان مرکزي برخـې ودانيز

# پوهنيز او اقتصادي بدلونونه

د لغمان ولايت پخواني مرکز قلعة السراج وچې په لغمان کې يې د وخت د سلطنتي کورنۍ د ژمنۍ هستوګنې ماڼۍ بلله . د دغې ماڼۍ چار چاپير يو لوی باغ ، د معتدل اقليم په راز ، راز ميوه لرونکو او بې ميوې ونو او زينتي بوټو سمسور او ودان و .خود اماني سلطنت د راپرزيدو په مهال ، د بچه سقاء په الغاو تلغاو ،داخلي جګړو کې د دغې ماڼۍ په سلو کې شپيته برخه تالا ترغې او وسوځول شوه .

خو د دغه سلطنتي ارګ او ترې او پريشانې بنې ته د هغه وخت چارواکيو پاملرنه ونکړه اوچايي په حقير سوی ستی زړه د غيرت پتی ونه لګوله ، زيات و کم اويا کاله هماغه شان سوی سکور و. خو له نيکه مرغه په لغمان کې د اسلامي امارت د جوړيدو د دويم ،دريم کال لالهاند د مشرۍ مسوولانو په تش لاس ، د کفري ملکود اقتصادي ظالمانه بنديزونو ، لاسوهنو سره سره د دغې تاريخي وراني ويجاړي ودانۍ رغوني ، سموني او جوړوني ته کلکه پاملرنه وکړه ، هغه ئې داسې مرمت او ترميم کړه چې د تاريخي کلا يا ارګ اصلي بڼه او جوړښت مسخ نشي .څو د خپل وخت د سلطنت د سلطان د ذوق او خيال د نښې او بيلګې په توګه ساتل شوی اوله يو نسل بل نس ته سم سلامت وسپارل شي.

– دغه راز پدغو ناسمو او غير اقتصادي شرايطو او هر اړخيزو مصروفيتونو– کې ، دلغمان مرکز سرخکان پول په اوږدو په شل کلو متره امارتي سرک چې د روسانو د تيرې په وخت وران ويجاړ اود وسايطو د تلو راتلو وړ نه و ، شګلن جغل اچول شوی ،ګريدر کړی شوی اود تلو راتلو وړ شويدی دغه راز د تلګړو په برخه کې

د الېشنگ د سبند د پاسه پول ئي هم مرمت کړي دی

- د الیشنگ دری امارتی سړک چې د روسیی تیری تاړاک وران ویجاړ کړی، د شل کلومترو په اندازه مخ په دولت شاد پراجگان ترمیم شوی او دوسایطو د تلو راتلو وړ شویدی.

د لغمان له مرکز د الینگار د ولسوالی تر مرکز وران ویجاړ سرک جوړ د غه راز مخ په نورلام بابا منډال ته هم د نوی سرک هلی ځلی روانی دی چي تر زیاتی اندازی کار پر مخ تللی او ځی.

- د لغمان مرکز څخه د مهترلام بابا د ښتی په اوږدو له اندروړ، گړوچ تر بادپښ ۴۰ کیلو متره سرک چی د سروبی نغلو سیمی سره نښلوی نوی واټ جوړ کړی شوی. باید ووایو چی د دغه واټ جوړولو نقشه په شاهی رژیم کی هم برابره شوی او یوه نری لیکه غزول شوي وه خو به راوروسته کلو کی سیخه سمه او ونه رغول شوه. اوس د اسلامی امارت لغمان مشری، دی واټ ته په پاملرنه هغه ورغاوه اود گنبي وړ يي وگرزاوه. چی کیدای شی د نغلو برښنا ډیم نه د برښنا د یوه مزی په راتیرولود مهترلام، وزبین، بادپښ د ښتی څخه چی د ری لغمان هومره دد د مالداری، کرهنی او صنعتی فابریکو کاغذ، سابون، غوړو او نورو په برخه کی په زړه پورې استفاده وشی.

- دلغمان په مرکز کي ډروښان په پخوانۍ ثانوی عالی مـــدرسی عـلاوه په دد زیارت، چهاردهی، عمرزیو، شمتیو، بصرام او نورو کی نوی عصری مدرسی اود حفاظو لیلیی اود دینی علومو ستری مدرسی او د هغو متممی مدرسی فعالی شوی دی.

- دلغمان نوی ښار لپاره د روغتیائی او بو د ژور کوهی د کیندلو کار روان، اود روسانو د وخت د سینما په ځای د جامع جومات د ودانۍ کار د خیر ښیگړپالو پانگوالو په مرسته پیل او پنځوس په سلو کی پرمخ تللی دی.

# دوهمه برخه

# بسم الله الرحمن الرحيم

## د کتاب موخه

چې ئې تول د زړ په ترازو شي　　خدمتګار د وطن هاسې وي کنه

وطن د مور په څير د انسان د زوکړې، سرويږدی ،اوروزنې پالنې له مينې ډکه غيږ ده د وطن اصيل بچي هم خپلې خاورې ته ،د ناموس په سترګه ګوري ،او زياته مينه ورسره لري.

د مينې ځای زړه ،اود انسان د سينې په صندوق کې دی. زړه لکه لوښی ،يا ظرف داسې دی ، خو د هر هر چا د مينې او ظرفيت کنډه يا اندازه او پيمانه يو شان نه وي. د چا سينه پراخه ، د زړه ظرفيت يا پيمانه لويه ،د چا محدوده ، او د زړه کنده يې کمکې وي .لکه څنګه چې په پراخه اولويو لوښو کې له کوچنيو ظروفو ډير څه ځايږي ،دغه راز په پراخه سينو، غټو زړو کې د زيات استعداد په وجه ، زياته مينه وي.

مينه له عقيدې سره ، چې باور باله شي ، پوره تړاو او پيوند لري. د داسې خلکو ، په عقيده کې ، د عمر کمې او کيفي حالت هيڅ دخل نلري سپيڅلې مينه او ښه عقيده ،الماس يا ملغلرې ته ورته وي، چې عرضه يې لږ ده او بيه يا ارزښت يې ډير اوچت وي ، چې هر څوک يې نشي پيرلی ، او په هر کور کې نه پيدا کيږي. د ښې او سپيڅلې عقيدې ، لوی لوښې ، پراخه سينې ، د زړه مينه لکه سمندر ، داسې وي ، چې په هغه کې ، د پلار نيکه حظيره -قوم ، تېر چا پيريال ، د لويشت لويشت خاورې ، هر هر بوټي ، کاڼي ، خويندو ميندو ،مشرانو کشرانو وروڼو مينه غورځنګ وهی. تل د خاورې آزادی ، د تورسرو د پړونی پت اود مشرانو د هسکی شملې حق ساتي. شمله د ښتنې ويارنو په کلتورکې ، د ننګ ، سپيڅلې هوډ ، د غيرت په معنی او پړونی د پردې او حياء مفهوم ورکوی . چې د افغانستان په شان اسلامی هيواد کې ، داسې

زړونواومینې ته زیاته اړه محسوسه دده .دیو مؤمن ادیب، لیکوال، شاعر، مبلغ اوخطیب د مزاج او طبعي مېچ «هغه چې دمینې لوښې ،ظرف او زړه یې بولي» کندډاو پیمانه د هغه مدلل بیان، خوږې خبرې اود الفاظو اکسیردی.

موږ دهیواد د دغسې ښې عقیدې د زړه او مینې د خاوندانو له جملې ،دلیک ولې د ډګر د صبر اوثبات د ک میړنی، په یوه محورکې د یومشخص مسلک معتقد ،۷۵ کلن مشر، ۵۰ کلن پښتو ،دړې لیکوال: راز محمد «وینښ» سره آشنا یو، چې لا تر اوسه ئې عقیده او مینه دواړه هماغه شان ځوان دي. دځوانانو په شان فکر او انګیرنه لري، سیاسي ،ادبي، اقتصادي مطالب اونور هرڅه دوخت دواقعي او مدللو شرایطو په بناء انشاء اود هنري براهینو په پسول داسې ښکلي کوي چې هرځوان یې سیالي نشي کولای دساري په توګه: له نن ٤٤ کاله دمخه یې د تنګي ځوانی په مهال هم پښتو ژبې ته داسې خدمت کړی چې د وخت د ځینو بهرنیو لیکوالو اومنابعو له خوائې هم ښه هرکلې شوی دی* او هغه له ۳۰۰ څخه د زیاتو پښتو چاپي کتابونو د ببلو ګرافیو هغه فهرست او شرحه ده چې په هغه کې د یوه کتاب له مؤلف او یامترجم نیولې دکتاب دهدف اومحتوا ترمعرفی په تولو اړخونو بحث شته. پښتو تولنې په ۱۳۳۷ کال طبع کړی چې له راورتې انګلیس مستشرق پرته په فهرست نګارۍ کې چا تر اوسه داسې کار نه ؤ کړی. مایل «هیروي» دړې ژبې سرمحقق تر ښاغلي «وینښ» را وروسته په دړې فهرست کې په ځرګنده اعتراف کړی چې زماکار د «وینښ» په سویه ندی هغه پښتو ژبې ته ستر علمي خدمت کړیدی او پدې لاره کې مخکښ دی» د پښتو تولنې دی کتاب ته د آریانا لومړی جایزه ورکړ شوې اوظاهر شاه ورته ،د ښتینولی مدال او فرمان

* مکنزی د برتش موزیم مشر- د ایران تقریظ مجله- ګیرس د مسکو شرق پیژندنی انستیتیوت استاذ

هم ورکړی دی ، دي د پښتو ژباړنو لومړی ژباړونکی دی چې په پښتوبې د جاذبې قوه لرغونی ژوی ساینسي مطبوع کتابونه ښه بیلگه ده .

ویښ صاحب د کورنی او ملک په دغو ناسمو ورانو ویجاړو اقتصادی شرایطو ، فزیکی کمزوری ، په دواړو سترگو د پردو راپریوتو د اپریشن له زیان تاوان سره سره د هجرت په حال د پاکستان د سختی تودوخی ، په چاپیر یال کی ، د «دافغانستان نن . پرون» او «جوان با تو میگویم» دوه په برابره قطع سل مخیز پښتو دری کتابونه لیکلی او طبع کړی. چې په دری نسخه یی ښاغلی قاضی سید فضل غنی «کامه وال» د هیواد لوی مؤلف او پوه لیکوال مناسبې څرگندونې او په زړه پوری تقریظ لیکلی اوچاپ شویدی د پشتو نسخې په لومړی برخه کی هم محترم مولوی صدر اعظم د ختیز زون مرستیال فلسفی لیکنه کړی او د ننگرهار د له ایزو خپرونو مشری له خوا هم په هغه ښه څه لیکل شوی اولغمان امارتی مشرتابه هم هغه ستایلی دی.چې نور د څه ویلو ، ځای په کی نشته .خو زما په خیال او فکر لکه څنگه چې هر سړی ، یا هر لیکوال د لیکل شویو اثارو له لوستو په عمومی کتنه سربیره ، ځانگړی انگیرنه یابرداشت هم لری . نو د دغه واقعیت له مخی د کتاب په محتوا سربیره زما انگیرنه په دی ډکله داسی خلاصه کیږی:

د دغه مشر سپین ږیری ړندی سترگی خو بینا زړه ، کمزوری باډی او پیری .خو قوی پیاوړی روحیه . ډیری خبری ( په دلیل کی دلیل ) خو تولی خوږی ، په زړه پوری-زوړ او فرسوده هیکل خو ځوان طبیعت پر کاله پریشانه ښه خو د وطن له مطبوعاتو ، تاریخ ،اسلامی دیانت سره زیاته مینه هرڅه لیکل زیات لیکل خو ښه لیکل او په خپله لیکنه بیا بیا کتنه ، آن د چاپ د ماشین تروخت لیدنی کتنی

شوق ، ذوق ،حوصله زما زياته خوښه دد .

«د دد مې دوه خبرې نه هيرېږی » يوه دا چی زمونږ يو همکار د کمپيوتر د پاسه مضمون کی دده له بيا بيا بدلون وارد ولو پوزی ته راغلی و. هغه ته وويل :

وينښ صاحب دا کارونه ولی د مسودی په وخت کی نه کوی چی د ماشين په سر نور او ځان ځوروی ؟!

دد په ډېره ماته غاړه ورته وويل :

گرانه له خپل ناکرار زړه سره نشم رسيدای دالفاظو خزانه دد ، هره لحظه هی چی د کلماتو په کرښو دسترگو بهير راشی زړه می غواړی چې د الفاظو د ناوي په سر نوی دړی کيږدم .

بله دا چی : وينښ صاحب په ليکنه کی داصول تنقيط مراعات دومره واجب گنی چی د يو ی کامی په نه اينښودو ، داسی خوابدی شی چی څو ورځی له ملگرو سره راشه درشه نکوی . دی وايی ښه اخبار ، ياښه مسوول ليکوال هغه دی چی هم ښه مطلبونه پيدا او هم يي له طباعتی غلطيو پاک چاپ او په خپل وخت توزيع کړي.

څو موده د مخه چې د يو رسمی هيئات په ملگرتيا دختيز زون به لوری د سفر زمينه راته برابره شوه ، د تصادف له مخی می هلته دوينښ صاحب « دافغانستان نن - پرون » کتاب د لومړی برخی يوه نسخه چی ترچاپ لاندی وه تر لاسه شوه هر کله می چی د دد ذوق خوښ او عنوان هم جالب وو سره له زياته مصروفيته می هغه وکوت .ډيرمی خوښ شو ،خوښ پدې چی تر اوسه چا داسی يو بيطرف د خدای لپاره د وطن سره د مينی په جذبه "د هيواد له ۳۰ - ٤۰ کلو را دی خوا" د هيواد چ.

۵۰ کلن نیته لیک ژرچی د هیوادوالو د ژوند بهیر یو له بل سره د غم لړلو پیښو له کبله د ځنځیر د کړیو په څیر تړاو لري ځکه هم حقایق ندي پسپړلي هرڅه لیکل شوي اوهرچا د خپل جهت په ګټه هرڅه ویلي ناوړه پیښی یی په خپله خوښه دالفاضو په پسول داسی وړاندی وروسته کړی چی له بده مرغه د معاصر نیته لیک سترګی یی پدغسی له حقیقت لرې ګډوډې هومره ړندی کړی چی حقیقت په کي ورک بریښي دساري په توګه : که د افغانستان په باب د کفری نړی نننی رجحان ته وکتل شي جوتیږی چی ګنی خدای مکړه افغانان بیځایه نښتي او وخت ضایع کوي خو په حقیقت کی دا پخپله د کفری نړی له واقعیتونو قصدا دانګل ، سترګی پټول اوځان تیرایستل دي.

د ساری په توګه : په افغانستان کی د تیرو رژیمو له اشتباه اوخطاګانو د را پیدا شویو ، وروستیو ناتارونو غمیزې .

- په افغانستان کی د کمونیستی تالی څټو ، قدرت ته په رسیدو د ملاء سید وژنی په هیواد کی د مالونو ،ځارویو ، ودانیو هر هر شی له منځه وړلو له دوومليون د زیاتو ښځو ، نرو ، ماشومانو وژنی ژوبلی . په افغانستان له یوملیون د زیات سره پوځ هوائی او ځمکنی زرد دردوونکو بریدونو د دوهم شاه شجاع په څیر ،کابل ته د کارمل راوستل ، اود کابل په ګدی کینول، د نجیب انسانی قصاب رامنځ ته کول او د مدرنی وسلی سکات دستګاه ورکول. د شوروی روسیی د تیری په ضد پاکستان ته د افغان کډوالو هجرت، د اسلامی انقلاب اعلان ، ۱٤ کلنی جهادی لاس په لاس جګړو کی دسره پوځ ماتي او په تیښتو سر له افغانستان وتل په افغانستان کی د وروستیو ۳۰ کالو هغه پیښی دی چی کفری نړی له افغانستان

سره داسلام دښمنی له مخې اوس پرې سترګې پټوي.

وینیں صاحب پدغه باب (دافغانستان ښن -پرون ) کتاب په لومړي برخه کې دغه حقایق دلیکولی دهنر د مهارت له مخې د امارت له سیاسي او ټولنیزو هراړخیزو مصرفیتونو سره سره ،په لنډ مهال کې د امارتی مشری په نوبت ،دقوم ولس په ملګرتیا اومالی فزیکی مرستو ، دلغمان ولایت .قرغیو ولسوالی معلوم الحال عینی ودانیزو ،پوهنیزو ، روغتیایی ، اقتصادی جتکو بدلونونو په داستان کی رانغښتی ، په ګوته کړي ، ورسره ورسره یې په افغانستان کی دد غوغم لړلو پیښو اصلي عواملو او محرکینو ته په اشاره دهیواد له تیرو رازراز زړه دردوونکو پنځوس کلنونا خوالو د پردې په پورته کولو د یوې قضیې پای دبلی قضیې له پیل سره په تړاو او پیوندا و له هغو کړیو د واقعاتو دځنځیر په جوړولو دټولو هغو چینجنو بیخ را سپړلی،چی دافغانستان دنوی معاصر نیته لیک د باوري منبع په توګه یې د ټولو کفری غرضي اوجهتی منابعو،د چا خبره هغه د « من در اوردیو »اوله ځانه جوړونو او په حقایقو سترګې پټولو مخه نیولی،چی څوک نشي کولای په افغانستان کې له پورتنیو مستندو غمیزو انکار وکړي.

ما له وینیں صاحب وغوښتل چې ددغې برخې لمن د هیواد نورو ولایاتو امارتی ئوښتونو ته که څه په لومړي ګام کی ډیرلنډ هم وي وغزوي . ځکه پدې کار به عنوان بیخي معنون شي .بل به دافغان ولس په لویشت لویشت خاوره دشوروی روسی الحادی تیری څیره نوره هم برالا اورسوا شي. دریم به روسیی ته وښودل شي چې د افغانستان په باب روان کفری تش په نامه تبلیغ د روسانو په جنایاتو پرده نشي اچولی او نه څوک د روس ناتار غمیزه دافغان ولس له زړه اونېته لیکه په

بیځایه او تو بوتو ویستای شی، خو یوازی په دی شرط، چی د افغانستان د اسلامی انقلاب د اهدافو او تر لاسه شویو بریاوو محصول اسلامی امارت د خلافت په وړاندی د ډېرو اچولو په ځای د وران ویجاړ افغانستان غرامات ته غاړه کیږدی او تسلیم یې کړي.

د وینین صاحب په لاس دی برکت شی. چی مصلحت یې ومانه د خپلی فرهنگی او مطبوعاتی اوږدی سابقی له مخی یې دا برخه هم څنگه چی هیله وه برابره او د کتاب متممه کړه. د هیواد مطبوعاتو د خدمتگار په حیث یې په د غه تولنیز ستر او اسلامی چوپړ کی زیار او همت ستایم او د اسلامی امارت د ملاتړني زړني گڼم.

ومن الله التوفیق

عبدالرحیم «ثاقب»

د شریعت اخبار مسوول مشر

# کـــــــابـــــــل

دا یوه منلې خبره ده چې کابل ښار له ډیرشو دزیاتو کالو راهیسې د سیاسی غورځنګونو دسیالیو او تالانګروځواکونو دزور آزموینو دمشق د تختی په ډول داسی ډېری ورې شوی چې نه یې یوازې د ودانیوله پلوه زیات زیان لیدلی ، بلکې دفنی ،تخنیکی ، علمی شتمنیو د تالاترغی کیدو له مخې هم ورته ډیر تاوان رسیدلی ، د ساری په توګه :

- دبرښنا - اوبو - مخابراتو او ورسره ورسره هر هر څه -د پوهنتون دکتابتون په سوو علمی کتابونه ، لابراتوار او ورسره هر هرڅه - دولتی مطبعی او ورسره ټول ماشینونه په راکټونو اولاسوهنو له منځ تللی دی ، چې اوس ئی رغونه او تلافی زیات وخت او لګښت غواړی.

خو د اسلامی امارت دمشری په نوښت ،سره له ډیرو ناسمو شرایطو ، اقتصادی ستونزو چې داسلامولی په جرم زموږ په اسلامی هیواد کی د بیځایه لاسوهنو ، په تیره د ملګروملتو د ظالمانه اقتصادی بندیزونو له کبله رامنځته شوی ، بیا یی هم په بیلو ،بیلو برخوکی دغه بریاوی ترلاسه کړی دی:

۱ - د پل خشتی جامع پراخول او هلته د زیات شمیرلمونځ کوونکو لپاره دعصری تشنابونو او کافی اوبوبرابرول .

۲ - د زاړه ښار ، باغ عمومی پول دکابل له چمچه مست سیند مــخ په قطب ، دد افغانانو ، سالنګ واټ پروان مینی ټولو برخو ،تایمنی ، شهرارا ، اکبرخان

مینی، مکروریانونو، د خیرخانې مینې ټولې سیمې ته د برښنا ،اوبو ،مخابراتو له پلوه خیر ښکړي برابري شوي٬خو د رحمن مینې ،سید نورمحمد شاه مینې شیر شاه مینې ،جمال مینې ،دریمې کارتې ،شهاب الدین غوري او خوشحال مینې لپاره هم د دغسې خیرښیګړو د ترسره کولو پلان ترلاس لاندې دی چې ژر به یې کار پیل شي.

۳ - د افغانستان اسلامي پوهنتون له بخوانې مرژواندی حالت چې نه یې د محصلینو لپاره کرسي ،نه یې حصیلي مواد او نه یې علاقمند استادان درلودل، او بې غږ او شور ،چوپه اوبې مینې فضا وه ،اوس د پوهنتون ټولې تحصیلي ځانګې بشپړې او له مینې رحنیني شوق ډکې دي ،له بست زیات داو طلب محصلان د نورو ولایاتو لکه ننګرهار کندهار، هرات او مزار پوهنتونو ته استول کیږي.

٤ - په بیلوبیلو سویو عصري او دیني لیلیې او نهاري مدرسې په کابل ښار او شاوخوا کې نه یوازې زیاتې شوي ،بلکې تعلیمي کیفیت یې هم لوړ شوی او د شاګردانو مینه هم له زده کړې سره خورا زیاته شویده. په عصري مدرسو کې د دیني ضروري مطالبو په زیاتولو زده کړه زیاته په زړه پورې شوې، او د زده کړې علاقمندي یې یو په څو زیاته کړیده.

۵ - د اسلامي معارف د نوي تعلیمي نصاب ،د پروګرام مفردات ، له ساینسي او طبیعي علومو پرته ټول د اسلامي نورمونو او موازینو له مخې جوړیږي ،چې د تالیف او تصنیف چارې به یې د نومړو پروګرامونو له مفرداتو سره سم دوړ او مناسبو مولفانو په همت تر سره او چاپ ته برابرشي.

٦- **وله ایز اطلاعات لګه** : راډیو جراید او مجلې له پخوا زیات خوندور او له کیف ډ ک دی ، دا ځکه چې ټول اخباری مطالب او راډیویی خپرونې په ډېنې منطق او اسلامی اوزښتو ټولنیزو ضرورتونو سمبال د نشر ډګر ته وراندی کیږی ،شریعت غږ راډیو ، شریعت اخبار اوقلم جریده ،دهیواد د مطبوعاتو د اسلامی امارت د طلیعې د پیغامونو هغه نوی انګازی او پلوشې دی چې د هیواد دننه اوبهر زیات اوریدونکی او لوستونکی لری، چې په دا ننشته طباعتی وسایلو ، ناسمو اقتصادی شرایطو کې دغسې په زړه پوری خپرونې د الله تعالی له عنایت پرته بل څه ندی.

٧ - د اسلامی امارت د روغتیایی خدماتو مشری له پخوا ډېره اغیزمنه شویده . دلته په دغو ناسمو شرایطو کې د دوا درمل له کمښت اونشت سره سره بیا هم د ځوان علمی ،طبی کدر په نوښت ګوم ګوان اپریشنونه چې په کابل ،ننګرهار ،کندهار ،هرات ،بلخ کې کیدای شی، په بهر کی ساری نلری، چې دا د الهی فضل اسلامی امارت سپیڅلی ارمان او وطن ته د ربښتینو هیلو له برکت پرته انګیرنه نلری.

٨ - پدغو موجوده ناسمو شرایطو کې له مرکز ولایاتو او له ولایاتو مرکز ته د مال متاع لیږدلو رالیږدلو د چټکتیا او اسانتیاو په خاطر له کابل تر وردګ ، میدان سرک اسفالت شوی او له غزنی لویی لاری امارتی سرک په بیړه تر ترمیم اورغولو لاندی نیول شوی چې له بهر د تارکولو د رارسیدو په خاطر د اسفالت په درشل کې دی. دغه راز د غزنی - کندهار د لویی لاری د امارتی سرک ترمیم اورغونه هم په بیړه روانه ده ،چې د اسفالت په رارسیدو به ډېر شی ، د کندهار ،هرات لویی لاری امارتی سرک ترمیم اورغونی پلان هم دغه راز دی.

هـــوالله المستعـــان

# میدان - وردک - غزنی - لوګر

دا د اسلامی پوهې، پښتني ننګ غیرت، ډکی تاریخی سیمی: حکیم سنائی «رح» د حکمت د فضایلو مهبط د ملا مشک علم غازی، مجاهد ملا نجم الدین اخند زاده او غازی محمد جان خان سرویږدی؛ د مولینا یعقوب څرخی ټاټوبی ځاله. له روسی الحاد سره په مخامخ جګړو کی د افغان میړنو - توریالو مومنو مجاهدو او غازیانو، په پای کی د بی شمیره بی کفنو شهیدانو ګور او کور، چې د اسلامی امارت له سپیڅلو هدفونو او نوښتو زیات برخمن ایسی.

دلته له کابل تر میدان، وردګو دلویی امارتی لاری، وران ویجاړ سړک پوره پوره مرمت او اسفالت شوی. اود غزنی کندهار په لاره ښه په بیړه کار روان دی.

کابل - لوګر امارتی لویه لار د پکتیا د ستنی کنډو تر برید اسفالت شوی او د څښلو روغتیایی اوبو، اود روغتیایی مرکز او متممو کلنیکو، پوهنیزو چارو سمښت او سمبالښت هم ډاډ من دی.

په غزنی کی د ډله ایزو خپرونو کار نن سبا ښه په غوره کی دی - وایی «دلندو ختو لیږ او به په کار وی» دامتل په غزنی، لوګر او میدان کی ښه صدق کوی. د غه سیمی د تیر وخت در ژیمونو په رسمی عصری او دینی مدارسو سربیره له آزادو مدرسو ښی غنی وی، د لوګر بابوس، د غزنی داندړو مدرسی د چا له یاده ندی وتلی. خو اسلامی انقلاب او دهغه بری، په تیره په هیواد کی د اسلامی قانون حاکمیت اود اسلامی امارت راتګ ددی سیمو د علمی جوش دینی تبلیغ او خپرونو تاو اورنیا ډیره پیاوړی کړه. د سنائی غزنی اخبار خپرونی ډیری د وخت له شرایطو سره برابرې او په زړه پوری دی.

ددغو سیمو ونډه په جهاد کی هم د کتنی وړده. د ټول هیواد په شهادت ددغو سیمو مجاهدو شاه زلمو چی زیاتریې شهیدان شوی په افغانستان د روسانو د سره پوځ له تیری سره سم د کابل ښار شپږ کروهی سیمه کلابند او د روسانو تر وتلو یی د غه کلابندی جاری وساتله، چې پدغه ټوله موده کی د سره پوځ او دهغه تالی څټو د دوی په وړاندی ساه قدر هم ونشوه ایستای. دا به سمه وی که ووایو ددی سیمو په مؤمنو وګړو د انسانیت سازې پوهی لمر راختلی، علمی تحرک ئی راویښ شوی یا راپارول شوی دی، داسی چی طالب العلمانو یی په یوه لاس کتاب په بل، د اسلامولی داخلاص او اصلاح دره نیولی، په لالهاند او رزمی حال کی زده کړه او په زړه پوری زده کړه کوی.

دا نن سبا چی د پښتو ادب لمن د خوند ور نثر په پسول دومره ښایسته شوی، یا د شعر د لطافت په رنګینو د پښتو د ادب باغ وېن شتمن او سمسور ښکاری، داد دغو سیمو خوږ ژبو بلبلانو د ترنم، د افغان مظلوم ولس له شلو زیاتو کلونو د پرله پسې کړیدنو، ځوریدنو، غورزو، پرزو د حماسو انعکاس دی.

د امیر المؤمنین د فرمان له مخی ددغو ولایاتو په هره ولسوالی کی د علما کرام یوه شوری فعالیت کوی.

# کنـدهـــار

دا د هیواد د ښه اومعتدل اقلیم ، پراخي طبیعي ورشو ، دوداني کرنیزې خوړې خاورې ،د باغ او باغدارۍ سمسور چاپیریال ، د په زړه پورې مالدارۍ، له خیرښیگړې برخمن ولایت ، د مبارکې خرقې د تبرک او تقدس ویاړلی ځای د میرویس نیکه او لوی احمد شاه بابا داسلامي امپراتورۍ تاریخي مرکز ، دوخت د معمارۍ شهکار ښار ، د شوروي روسیې د سره پوځ له یوملیون د زیات زمکني او هوایي جنگي افرادو ، لس کلنو پرله پسې بمباریو او راکټ ویشتو په نتیجه کې داسې وران ویجاړ ، دوړې ، دوړې شوې ، چې د خرقې مبارکې میرویس نیکه او احمد شاه بابا له مرقدونو پرته هیڅ شی هم سم ندی پاتې.

خو د اسلامي امارت په نوبت له زیاتو سیاسي مصروفیتونو ، د کفرې ملکو د اسلام د ښمنۍ په خاطر په افغانستان د ملگرو ملتو د اقتصادي بندیزو د پاسه بندیزو نافذولو په ملک کې د اقتصادي ناسمو شرایطو سره سره . د مومن قوم ولس په مرسته د کندهار ښار بیا رغونه پیل شوې او تر زیاتې اندازې ودانیزې سمونې رامنځته شوې ، د ژوند لومړې شرایط لکه د روغتیایي او بو شبکو سمبالول ، د برښنا د مزیو برابرول او له هلمند کجکي څخه د برښنا د مزیو راتیرول او په ښارې او امارتي موسسوکې یې غزول او فعالول. د روغتیایي مراکزو سمبالول هر هر ځاي ښاري روغتیایي کلینیکونه جوړول، د ښار د جامع جوماتو ودانول، چې د هغو د تشنابونو او اوبو برابرولو چارې هم ترسره شوې دي.

- په کندهار دا دافغانستان دعلم او پوهی طبیعی مرکز کی د امارت په نوبت اوس زیاتی لیلی اونهاری دینی او عصری مدرسی جوړې شوی، چې په سوو طالب العلمان په کی زده کړه کوی.

- دلته د ډله ایزو اطلاعاتو لکه رادیو یی خپرونی، د طلوع افغان د اخبار، خلافت او کندهار مجلو فعالیت دکابل په دوهمه درجه کی دی. د رادیو یی نشراتو او اخبار اومجلو محتوا اوکیفیت له تیرو وختو یو په څو گنیور او د علمی او دینی ژوند له خیرښیگړو ښه برخمن دی.

د خلافت مجله د اسلامی امارت د سپیڅلو هدفو معرف، څرگندونکی هغه ښکلی علمی، سیاسی دینی ټولنیزو معلوماتو خپرونکی ده چی دصحافت او محتوا سیال یی د افغانستان په نن پرون کی نه ترسترگوکیږی. دا هم باید وویل شي چی که څه کندهار د طلوع افغان د خپرولو لپاره هم مناسب او کافی ماشینونه نلری خو ددغو مجلو دغه راز چاپ او صحافت دامارت دښو هیلو او امارتي مسئولانو د سالمی مرستی له برکت پرته بل څه نشي گڼل کېداي.

د هیواد په نوروسیمو د کندهار د دینی آزادو مدرسو د کثرت له فضیلت هیڅوک هم سترگی نشی پټولای او څومره چی د کندهار په اصطلاح کی داخندزاده کلمه زیاته مصطلح ده په نوروسیمو کي بیا هومره نده، او دا ددی دلیل دی چی دینی مدرسی اودینی تدریس دهیواد له هری بلی سیمی دلته زیات و اودی، په کندهار کی بی لمانځه نر، ښځه نه موندل کیږی او هلته له دی کبله د امر بالمعروف ستونزه ډیره لږه برینبي.

دا د کندهار مؤمن ښاریان وو چی په ۱۳۳۹ کال هغه وخت چی شاهی رژیم د

ښځو د حجاب او ستر يو اړخيزه قهري پريکړه وکړه ،دوخت د سلطنت د دغه غير شرعي حکم په خلاف راولاړ شول او خپلې ويني يې تو ئي کړې .

نوځکه اسلامي امارت د ښار د پراختيا او د نفوس د زياتوالي له مخې د ښار يانو مومنو ورونو په يوه ځاى کې د اختر د لمونځونو د اداکولو او په يوه زړه او خوله د الله تعالى د ربارته د اسلام د عزت ،د مسلمانانو د برى او د افغان مسلمان ولس د نيک مرغۍ لاس اوچتولو او دعاکولو لپاره، د ښار څخه گوښه په څه ناڅه له سلو جريبو زياته پراخه ساحه کې يود عيدگاه چې پراخ باغ هم پرې را تاو شوى ودا نه کړيده، چې دا دوه کاله په هغه کې د اخترونو لمونځونه د عاليقدر اميرـ المومنين په امامت ادا کيږي.

– کندهار ښار چې د امارتي ، بهرنيو موسسو ،تعليمي مدرسو او د پوهنتون د پرسونل او ولسي افرادو گڼې گوڼې ډک ښار دی ، د لته په امارتي ترانسپورت سربيره، خصوصي سکتور ته هم د فعاليت اجازه ورکړې شوی او له يوه ځاى بل ځاى ته د ليږد لو چار خورا اسانه شويده.

– د کندهار د ښار واټونه، مرمت شوي او د هوايي ډگر او ښارتر منځ په سړک هم شگلن جغل اچول شوي ، د کندهار بولدک او له بولدک تر وېش ، له ( ۷۰ ) کيلوـ متر وزيات سړک هم په جغل او شگو مرمت شوی او د بيا اسفالت کاريي د تارکولو د برابرولو په درشل کې دی.

په کندهار کې د طب ،حقوق ،ادبياتو ، انجنيرى ، اقتصاد او شرعياتو پوهنتون فعال دی، چې د کندهار د عصري او د يني مدارسو فارغان په کې لوړې زده کړې تر سره کوي.

– په کندهار کې د هيواد د خيرښيگړپالو پانگوالو په مالي مرسته زيار روان دی، چي نه يوازې د وړيو فابريکه، بلکې د ميوو او داسې نورو لکه، صابون ، غوړو ، قند... فابريکې هم فعالي شي **هــو الرحمن الرحيــم.**

# ننگرهار

د اسلامي امارت ختيز زون مرکز ،ننگرهار ولايت امارتي مشرۍ په افغانستان کې د ملګرو ملتو د اقتصادي تعذيراتو او زموږ په ملک کې د کفري هيواد و په راز راز پلمو د بيځايه لاسوهنو په وړاندې د مثبت د ريغ په غوره کولو د ټولنيزو شرايطو او غوښتنو سره سم په ننګرهار کې دا لاندې ودانيز ، اقتصادي او پوهنيز نوښتونه رامنځته کړيدي:

۱- جلال آباد ، درونټې ، جلال آباد ،تورخم ترمنځ د پنځوس کلومترولويي لارې سړک چې روسي تيري دومره وران ويجاړ کړى و ،چې څلور ساعتو کې هم متوسط ګاډي نشو طي کولاى . خو اوس چې ننګرهار ولايت امارتي مسؤولانو له پخوا لا ښه رغولي او اسفالت کړى دى متوسط ګړندي ګاډي ئې له يو نيم ساعت په لږ مهال کې طي کوي.

د اسلامي امارت ختيز زون ، ننګرهار ولايت د امارتي مشرۍ دغه ګام پدغه لړه مودة ، خو راناسمو اقتصادي شرايطو کې په حقه چې د تيرو رژيمو له پنځوس کلنو فعاليتو سره سيالي کوي.

۲- د جلال آباد ښار او چار چاپيرو سيمو سرکونه ټول يو ځل بيا مرمت ،کرېږ او اسفالت شويدي.

۳- د ختيز زون په نوښت او د هيواد د يو شمير خير ،ښيګړ پالو پانګوالو لکه : حاجي عبدالباري ، سحر ګل او نورو په مالي مرسته د ننګرهار . کابل لوئي لارې امارتي سړک اسفالت کولو چارې سږ کال د ربيع الاول په مياشت کې پيل

اود (۱۲) سانتی مترو په پریړ والی په بیړه مخ په وړاندی رواني دی چی هیله ده
له یوه کال په لږه موده کی د کابل - ننګرهار سړک د اسفالت چاری هم تر سره شی.

٤ - د جلال آباد ښار د ختیز زون ، ننګرهار ولایت امارتی مسوولانو په نوښت په سلو کی پنځوس مدرنیزه شویدی ، اوس د جلال آباد په ښار کی زیات مارکیتونه ،زیرزمینی بازارونه ، څو پوړیزه پلازاګانی ، راز راز رستورانونه په عصری او پخه توګه ودان کړی شوی او د نورو دغه راز ودانولو چاری په چټکی مخ په وړاندی د رومی.

٥ - د ختیز زون ، ننګرهار ولایت په نوښت جلال آباد ښار نن سباد افغانستان د علومو او فرهنګی خیرښیګړو له پلوه هغه علمی اوفرهنګی مرکز دی چی په هغه کی د طب ، حقوقو ، اد بیاتو ، اقتصاد ، شرعیاتو ، انجنیری او داسی نورو دینی علمی مهدونو مجهز پوهنتون فوق العاده فعال دی چی نه یوازی د ټول هیواد یود ځلورمه برخه پښتو ژبی محصلان بلکی د پاکستان زیات شمیر پښتو ژبو محصلانو هم په کي داخله کړی او په زیات شور وشوق درس وایی.

٦ - د ننګرهار ښار ،جلال آباد امارتی مسوولانو په نوښت اوس په بیلو ، بیلو سویو د پخوا پرتله یو په دری زیاتی عصری اودینی لیلیی او نهاری مدرسی لری ،چی د نفوس د ورځ تر ورځ زیاتیدو له مخی امارتی مسوولان وخت په وخت زیارباسی د دغه راز دینی او عصری مدرسو لمن نوره هم پراخه کړی.

٧ - په ننګرهار کی ډله ایزی خپرونی ، رادیو ، اخبار ، مخابراتی سیستم په ښه او نوی طریقه دخلکو د ذوق اوضرورت سره سم فعالیت کوی. ادبی دینی ، علمی پاخه اوتازه مطالب چی د ټولنیزی روزنی ، دینی ادابو او اخلاقی ضرورت په پام کی نیولو سره سم برابر شوی خپریږی. رب زدنـــي علمـــاً

# پکتیا - گردیز

دا د پښتو د غیرت شمله ، د غازیانو ، اتلانو مرکز ، په افغانستان د انګلیسانو د ، درو ،تېرو،تیریو په شاتمبوونکي ویاړلی سنګر . د عبدالحی ګردېزی،دهیواد تاریخ پوه مفکر عالم او ستر ادیب علمي غولی او تودنغری، د روسانو د تیری په ناتار کې ښکیل شوی،کړیدلی ښار او ولایت . داسی لوټې لوټې شوی،چې جوړونه او رغونه یې ډیر فرصت غواړی.

متل دی چې وائی : یو ناروغ بل ئی په اوږو سور ، اوداخبره ددې سیمې په حال د روسانو د تیری په تړاو پوره پوره صدق کوی.

د پکتیا ، ګردیز خپل غرنی مدنی کمې اوپوهنیز بیرته پاتې والی لا نه و ، رغیدلی او نه و ، پوره شوی ،چې د روسیې ناتار پرې راغی او نور ئې هم وځانډه اوډیر یې ژوبل کړ .

په خواشینی باید ووایو پکتیا ګردیز ځومره،چې د هیواد په ویاړونوکې ښه برخه لری ، هومره ئې د استفادی برخه خوارده اوترهرې بلې سیمې لږه ده .له دغو وروستو جګړو او اسلامی انقلاب د مخه،پوره پنځوس کاله،د شاهی نظام په بیغمه دوره کې، چا ددغه ځای خلکو ته،د کلینراو ډرایور » پرته په کوم پوهنیز اومدنی نظر ونه کتل . هلته چا لږ تر لږه تعلیمی ، حرفوی ، تخنیکی مدرسی هم جوړی نکړی ، دهغوی ژوند ته یې مدنی بڼه ور ونه بخښله .

خواسلامی امارت،دې سیمې ته په ډیره درنه سترګه کتلی .دلته یې په پخوانو

عصري اودیني مدرسو سربیره؛ پراخي اوله زده کوونکو ګڼې؛ مدرسي پرانستې، چې د سیمې د تعلیمي نصاب؛ ور بچیان په کې زده کړه کوي. خوست د دغې سیمې دستر ګو د روښانه کیدو یوه برخه ده. د لته عصري او دیني زیاتې مدرسې فعالیت کوي، په تیره دیني مدرسې په داسې غوره کې دي؛ چې فکرکیږي تو له حقانیه رالیږدول شویده.

د پکتیا د له ایزې خپرونې، په لوړه کچه درول شوي. ورانګه پخوانۍ اخبار اوس د دیني، ادبي او سیاسي خپرونو له محتوا داسې ډک شوی؛ چې مشال ترې جوړ شوي. په هغه کې د ورځنۍ غوښتنې د نننۍ اسلامي وخت د شرایطو له مخې خپروني کیږي؛ چې زیات لوستونکي او همکاران لري.

په پکتیا کې د اسلامي امارت په نیکه اراده، د ولس او امارت اداري واحدو په منځ کې د نژدې تفاهم په خاطر په هره ولسوالۍ کې د علماء کرام یوه شورې تولې (لس) شورې ګانې فعالیت کوي.

# هــرات

دا د افغانستان د متبرکو مزاراتو - له هغی جملې د خواجه عبدالله « انصار.رح» له فیوضاتو ډک ښار ، د ابدالیانو ، نورزو او غلجو با تور وپښتنو سرویږ دی ، دهرات اتل امیر دوست محمد خان ویاړلی سنگر - د کمونست ملحد ځواک په وراندې دا وسپنیز پاخون دیوال ، دهرات ولایت تاریخی،هری له پریمانه غلې دانې ډکې سیمی ، دشنو باغونو ، هر راز میوو ، خیرښیگړی گدام . روسیې تالانگر ځواک سره پوغ ،دهیواد دنورو برخو په شان داسی سرومال کړ، چی جوړښت یی اوس ډیر لگښت اوزیات وخت غواړی.

خو بیا هم دایران گاونډ هیواد، د بیځایه لاس وهنواواقتصادی نا سازو شرایطو سره سره، د اسلامی امارت په نوښت، ښاری واټونه ، د اوبو ، برښنا اومخابراتو پخوانی وران ویجاړ سیستم اود ترانسپورتی ښاری لیږدونو را لیږدونو گډې وډې چارې ښې سمی او فعالی شویدی.

- د تعلیمی او روزنیز سیستم بهیر هم، له پخوا ځوځله د دینی موادو په اضافه کولو، په زړه پوری شوی ، نوی عصری مدرسی او د مهدونو په سویه، دینی لیلیی اونهاری مدرسی هم جوړی او فعالی شویدی.

دلته د لوړو زده کړو مجهز پوهنتون، چی د حقوقو ، اقتصاد ،ادبیاتو بشری علومو ، شرعیاتو ، انجنیری او نوری تحصیلی فعالی څانگی لری .اود محصلانو د گنې گونې د زیاتې مینی او ذوق له پلوه ښه په شور او ځوک کی دی. د هرات په

پوهنتون کې د هرات ولایت د عالي دیني او عصري مدرسو په فارغانو سربېره د هیواد د نورو ولایاتو د پوهنتونو اضافه بست فارغان هم زده کړه کوي.

- د هرات ډله ایزې خپروني لکه : راديو يې اخباری او د مجلو نشرات د هرات ولایت د امارتي مسوولانو په ژوره پاملرنه او د ديني ضروري معلوماتو په اضافه کولو او د خلکو د غوښتنو په پام کې نیولو له مخې خورا اغېزمن شوي چې اوس د هرات په مرکز او د هیواد په نورو ولایاتو کې زیات لوستونکي او اوریدونکي لري.

- هرات د هیواد د شعر او ادب د شتمن چاپيريال په توګه اوس د پښتو ، دري شعر او ادبیاتو دانډول اویو له بله د برابرښت له مخې هغه د چا خبره په شیر او شکر یا د شعر او ادب په سمسور بڼ بدل شوي چې په هغه کې د راز راز بلبلانو د خوږو خوږو نغمو په ترنم زړونه هوسېږي او آرزوګاني رابوګنيږي.

دا چې د څو کالو پر له پسې وچکالي له مخې د هیواد د لږ څمکو ، سړوسيمو خلک له خپلو اصلي کورونو د هرات ښار شاوخوا ته کډوال شوي دا یو ، قدرتي کار دی چې ، په توله نړۍ کې داسي پیښیږي لکه چې د دغو سیمو خلک ٤٠ کاله د مخه هم د دغسې وچکالي له مخې د هیواد ټولو ښارو ته کډوال شوي ، د رویزه اوګدائي بې کوله . دا مسأله د چا د الزام دلیل نشي کیدای په تیره په داسي شل کلن جنګ ځپلي هیواد افغانستان کې . **هو الرزاق ذوالقوة المتين**

# بلـــــــــخ

د هیواد د امارتی مشری ، شمالی زون مرکز ، چی د لرغونتـــوب لـه مخې یی ام البلاد بولی ، اود علی کرم الله وجهه د زیارت د فضیلت په برکت بلخ او په هغه پورې د اړوندو امارتی اداری مراکز وسیمې د هر ډول مالدارۍ د پراخو ورشوگانو په غنا سربیره - د راز راز غالیو ، لیمخواو گلیمونو ، جوالونو ،خورجینو د صنعت شهکار ، د زیاتو غلو دانو ، په تیره بښو نریو وریجو ، خوږ وخوږو خربوزو او هندوانو حاصل خیزه برخه گڼل کیږی . په خواشینۍ چی د شوروی روسیې د پوځی ظالمانه یرغل له مخې تو کر تو کر شوی اونن سبا ئی سمونه او رغونه پوره فرصت اولگښت غواړی.

- د اسلامی امارت د مشرۍ په رامنځته کیدو ، سره له وروستیو غم لړلو پیښو بیا هم دلته د ولسي خواک اوامارتی مسوولانو په پورد تفاهم اومرسته ، د ښاری فنی ، تخنیکی ورانو ویجاړو په سمښت لکه : اوبو ، بریښنا ، مخابراتو بری ترلاسه شوی ، منظم روغتیایی مرکز جوړ ، د کلنیکو شبکې هر هر ځای فعالی شوی ، د غه راز ښاری ترانسپورتی لیږدونی هم دامارتی او خصوصی مجازو سکتورونو په وسیله لا زیاتی تکړه شویدی . باید وواېو بلخ له کابل ، کندهار وروسته د هوائی آریانا شرکت دوهم ستر مرکز دی.

- د اسلامی امارت د بلخ زون امارتی مشری مسوولانو او ماهرانو په نوښت د هغی سیمی کود وبرق فابریکی چاری بیا پیل شوی او په تولیدیی شروع کړیده .

دغه راز د بهراس سرچینه خلاصه او فعاله شوې ده ،خو هغه د ظاهرشاه – شوروی دوخت یو اړخیز قرارداد،چی ټول پهراس وړیا روسیې ته لیږدیده،فسخ او لغو شویدی.

– په دغه سیمه کې د اوموتیلو چینی راختلې،خود تیلو د تصفیی اوله هغود سمي گتنی داخیستو لپاره ،امارتی مشری د فنی او تخنیکی لازمو سمبالتیاوو په تکل کی ده.

– د زون د امارتی مسؤلانو په نوبت په بلخ ، علم پال پراخ چاپیریال کی د باختر ،اسدیی او تخار اونورو پخوانو عصری او دینی مدرسو سربیره نوی لیلی او نهاری لویې لویې او متممی مدرسی جوړې او فعالی شویدی.

– په بلخ کی د لوړو تحصیلاتو مستقل پوهنتون فعال دی. په دی پوهنتون کی د بلخ زون د عالی مدرسو فارغان ، په بیلو بیلو رشتو: حقوق ، ادبیاتو ،شرعیاتو ، طب ، اقتصاد ،انجنیری او علومو څانگو کی تحصیل کوی. ددی زون په پوهنتون دمحصلانو رش دومره زیات دی،چی د هیواد د نورو پوهنتونو اضافه بست فارغانو ته د تحصیل ډیر لږ چانس پیدا کیږی.

– بلخ د ډله ایزو وسایلو بشپړ امکانات اووسایل لری لکه: مستقل رادیو ، اخبار او مجلې،ددی زون خپرونی ، له دینی موازینو سرچینه اخلی ، اوداوریدونکو د ذوق ، ضرورت په پام کی نیولو له مخې،د ورځی له شرایطو سره سمی وړاندی کیږی. د بلخ زون سراسری مؤمنی سیمی ، په دې انگیرنه،چی له شلو نه د زیاتو کلو په موده کې د الحاد په وړاندې،ددین د ساتنی پخاطر جهاد شوي ، نو اوس چی دین بری تر لاسه کړی،باید ددین په درنښت،په هر رازکړو وړو کی ددین مصلحت په پام کی ونیول شی. **ان دین عندالله الاسلام.**

# په افغانستان کی د بهرنیو
# ښیګڼپالو پروژو څرنګوالی

که څه د افغانستان خلکو لپاره د مهاجرت په موده پاکستان کی هم نړیوالو ښیګڼپالو پروژو په بیلو بیلو برخو کی اغیزمن کومکونه کړی او افغانستان ته د آزادی له ډالی راوړو سره سم راغلي او په ۱۳۷۰ هـ ش کال لاس په کار شویدی . خو په خواشینی چی زیاترو د غه راز پروژو دلته د خپلو سیاسی ګټو په پلمه کار کاوه او کوی یی . هاغه د چا خبره « که بخلوت میروند ان کار د گر میکنند » داسی چی هدف ئی سیاسی او پلمه ئی کار و خوبی له شکه داسی پروژی هم وی او شته - چی فعالیت یی د خیر ښیګڼی په نورمونو ولاړ ، او بشری هدف ئی درلود اولری یې لکه : « **نبراسکا - ډاکار - اپریشن سلام - سویدن** » چی مشت نمونه خروار په افغانستان کی د دوی د فعالیت بیلګو ته ګوته نیسو :

۱ - **نبراسکا** : فرهنګی ،تعلیمی ، نړیواله پروژه ده . چی د خپل علمی اومسلکی دود سره سم یی د وخت دشرایطو له مخی دلته د یو ثابت تعلیمی نصاب تر منځته راتلو په افغانستان کی د تعلیمی بهیر دفعال ساتلو له امله ، د افغانستان د سلطنتی ، داودی ،کمونستی رژیمونو اوهجرتی نظام تعلیمی پروګرامو له مخی د دوو ژبو « پښتو ، دری » له لومړی تر دولسم ټولګی یو مخلوط او مکس تعلیمی نصاب جوړ کړی ،او د دواړو ژبو د مدارسو لپاره یی درسی متون تالیف تدوین - چاپ او د افغانستان لری سیموته لکه : فراد ،

چخانسور ، هرات ، زابل ... استولی او استوی.

۲- ډا کار د ډنمارک د ښیګرپال هیواد ساختمانی پروژه ده چی د کلیوالو روغتیایی اوبو ، کوهی کیندلو ، د ماشومانو تعلیمی مدرسو، د لویانو د سواد زده کولو کورسونو ،کلیوالوته د حرفوی چارو ښوونې ، کرکیلی عصری کولو ، اوبدلو د باغ جوړولو او نیالګیو ایښودلو ، پیوند کولو، د روغتیایي لومړنیو مرستو عملی ښووني کوی ، په افغانستان کی د اسلامی امارت په موده کی، یوازی دلغمان ولایت د الینګار، د ولسوالی په دوو د رو « سالاو اوسنګر » کی د غه چاری ترسره کړی دی:

که څه د سالا و او سنګر د رود غرونو لوړوالی یو له بله توپیر لری .خو په مجموعي توګه دا غرونه ۲۰۰۰ فوټه لوړوالی لری. چی په دواړو د روکی یی لومړی د ۱۵- ۱۵ کلومترو په اوږدواو (۱۰) مترو عرض سړک، چی دوه ګاډی خوا په خوا په کی تګ راتګ کولای شی. داسی سم جوړ کړی، چی د قیرا و اسفالت سړک ئی هم سیالی نشی کولای.

له ټولو د مخه یی په کلیو کی، د مشرانو له جملی د څو وړ او لایقو کسانو په ترکیب، کلی شوری اوبیا یی د کلی له نارینه افراد و، د روغتیایی لومړنیو مرستو دلنډی مودی تعلیمی کورس جوړ، او په هغه کی د پیښی د مخنیوی لاری چاری ور زده، او د ضرورت په وخت ئی عملی کړی . د غه راز د کورس په پای کی شاګردانو ته یو ، یو ،پنس ، قیچی او د اسی نور سامان او دواوی هم ورکړ شویدي .

- د لویانو د سواد زده کولو کورس ، د ماشومانو د زده کړی مدرسی یی پرانستی او د دینی او افغان رواجی مطالبو تدریس یی په کی پیل کړی دی.

- د کلیو، خلکو خاص نارینه وو ته د اکتفا به خود ( په ځان تکیه کیدو اصولو د ښوولو له مخی د هر راز او بدلو او جوړولو د مهارت کورس پرانستی) چی فارغان ئی اوس د خپلی خوښی په آزادو مشاغلو بوخت دی.

- کروند گرو ته د کرنی، اوبولګولو، کود ورکولو د هرزه‌ګیاوو د لری کولو د لاروچارو ښوونی کورسونه جوړ او فارغان یی له دغو زده کړو په خپلو چاروکی برخمن او خود کفا دی.

- باغ والوته ئی د ښه جنس میوو نیالکیو کینولو او د ښه جنس د پیوند ولو چاری ښوولی او عملی کړی دی.

- د ځنبلو داوبو کوهی یی ایستلی او په کلوکی یی د اوبو د شبکو په ذریعه د اوبو نلونو غزولو کار تر سره کړیدی چې کلیوال تری ګټه اخلی.

- ددغو درو «سالاو او سنګر» د غرو د ګډو وډو، څخوبیو او چینو اوبه لومړی په واحد میسر کی ذخیره او جمع کړی او بیایی د غرنیو کروندو لپاره په سیمتی معبرونو کی کروندو ته لېږ دولی چی په دی صورت د غره یو څاځکی اوبه هم نه دی بیځایه شوی. او نه بیځایه کړی.

- په کلیو کی یی د برښنا مزی غزولی او حرارتی برښنائی فعاله کړیده.

۳ - سویدن پروژه: دا پروژه هم په افغانستان کی د کلیوالو ماشومانو د تعلیم د مرسود ځای ځایگی جوړولو کوهی کیندلو او کلیوالی روغتیایی اوبو برابرولو، د ځمکو لپاره د پندونو جوړولو او ویالو ایستلو کار کوی چې د ماشومانو د مدرسو، کوهی ایستلو، ویالو کیندلو بیلګی ئی د لغمان په ولایت او نورو سیمو کی شته.

۴- اپریشن سلام : که څه دا پروژه دا اهمیت له مخې د ټولو پروژو په سر کې ځای لري خو په خواشینۍ چې کاریې ډیر سست ، غړند او نامسوولانه پرمخ روان دی پخپله خوښه دلسو ورځو په کارمیاشتې تیروي.

ان تردې چې ددغې پروژې مرکزي هسته چې په پاکستان کې اوسي هم ددغې حیاتي پروژې څارنه نه کوي اونه پوهیږي چې څومره کار په څومره وخت کې باید وشي.

له دې داسې جوتیږي چې پلان اودکار ویش او وخت « روزانه ، میاشتنی ، کالنی پلان نلري . څه یې چې زړه غواړي هغه کوي، نوخدای خبرچې داکار به څه وخت خلاصیږي اومسلمانان به له بیځایه وژنې څه وخت بچ کیږي.

ددې خبرې صورت حال معلومول ضرور اود وخت ضایع کوونکو لاس لنډول حتمي بریښي. والسلام

# د افغانستان اسلامي امارت

## پنځه کلنی بی ساری نوښتونه اوبریاوی

په گران افغانستان کی ، د طالبانو د تحریک دځلیدو - د اسلامی امارت له جوړیدو، په هیواد کی ، د اسلامی شریعت اونبوی سننو له نافذیدو ۱۳۷۵/٦/۱۵هـ ش له ۲۵ کالو را دیخوا ، له راز ، راز گډوډ یو وروسته ، په ملک کی دبشپړ امنیت دټینگښت له مخی ،داسلامی امارت په تیرو پنځه کلو کی دغه بی ساری نوښتونه او بر یاوې تر لاسه شویدی :

۱- په هیواد کی ، د ښځو د زیات و کم ځلوینبت کلنیزی بی حجابی ، او بی ستری، ته « چې اروپائی شاته اچولی وه » د پای ټکی ایښودل، د سینما اونڅا ، گډا او نورو شیطانی عبثو چارو بندول ، هغه گامونه دی ، چی له افغانستان، د بیدینۍ د تغر ټولولو په اراده ، د طالبانو داسلامی تحریک سره سم پیل شول.

باید پته پاتې نشی ، چی جهادی تنظیمونو هم، په ۱۳۷۱ کال هیواد ته د اسلامی بری د ډالۍ دراوړلو سره یوځای ، ددغه اسلام رټلو شیطانی لوبود تحریم اعلان کړی و. خودډلوټپلوپه نیم بنده تنظیمی رهبریوکی ، د کمونستی عناصرو ، د پاتې شونو د نفوذ له مخی ، دغه تحریم تر سره نشو ، او څوک ونه توانیدل ، چی حجاب حتمی اوشیطانی لوبی بندی کړی . دا یوازی د طالبانو اسلامی تحریک او اسلامی امارت منل شوی مشری وه ، چی په ملک کی ئی د اسلامی شریعت په ټینگولو د ښځو حجاب،ستراو شیطانی اعمال په کلکه بند او د هغو څارنه جاری وساتله .

۲ - داسلامولی په جرم، په افغانستان کی د کفری اوشیطانی عملونو بندولو

سره په ضدیت ، په افغانستان کې د امریکې د راکټ ورولو او کفري هیوادو په لمسون په افغانستان کې د ملګرو ملتو د اقتصادي بندیز کې د پاسه بندیز لګولو په وړاندې ، د نه ماتیدونکې دریځ غوره کول له اسلامي حدودو نه تیریدل او نه تسلیمیدل د حضور (ع) هغه اسلامي غرور ته ورته دی ، چې د یوې مخورې قبیلې سارقې ښځې د سرقې د حد جاري کولو د مخنیوي په خاطر د وخت د قوتونو حتی د ځینې صحابه و د غوښتنو په وړاندې ودرید ، او حد ئې جاري کړ.

۳- په ملک کې د پوره او بشپړ عدالت ټینګولو - د قوم ولس او امارت د محلي او مرکزي مسؤولانو تر منځ د نژدې او مستقیم تفاهم - د افغانستان اسلامي تولنې فردي او ټولنیز کړه وړه کې د اسلامي معابیرو په محور د رولو او څرخولو لامله د هیواد کې د ولسوالیو له سطحې تر ولایاتو ، په ټول وطن کې د محل د جوماتو د خطیبانو او محلي دیني عالمانو په انتخاب هره ولسوالي کې د څلورکسیزې علماء کرام شوری تاسیس . د هیواد د خلکو د خیرښیګړې د ترسره کیدو ، د اسې غوره ګام دی چې د تیرو رژیمونو تش په نامه نمایشي انتخاباتي شوراګانې یې ګرد ته نشي رسیدای.

٤- د اسلامي امارت له امریکا ، د تنبتبدلې جاني او ملي خائن «مالک» غوښتنه د افغان نیتپه لبک بې ساري ګام دی.

دروا غجن جنرال مالک کې هغه تش په نامه افغان ، اصلاً د روسیې په یوکراین کې ۱٤ کاله روزل شوی ، پوځي پوخ کمونست دی ، چې په بلخ کې د ایران ، روسیې د پوځي سلاکارانو په ترکیب کې ، د مشرغړي په توګه ، په درغلي او دوکه ، د بادغیس ، فاریاب ، جوزجان او بلخ ، د آزادولو په وخت ، د طالبانو له اسلامي

بهیر سره یوځای شوی او په نتیجه کې د نوموړو پټو پوځي شبکو په مرسته د لیلی په دښته کې له اته زرو زیاتو طالبانو او مجاهدینو ورونو د شهادت محرک او وسیله شو او روسته لومړی ایران او بیا امریکی ته وتښتید او تر اوسه هلته پټ دی.

٥ – له اسلامي اصولو سره به ضدیت کې یو هم د کوکنارو د لعنتي بوټي کرکیله او د هغه د مشتقاتو «تریاق» او «هیروپین» او داسي نورو راکړه ورکړه ده چې له مودو مودو راهیسي زمونږ د ملک د کرکیلې او اقتصاد یوه برخه ګڼل کیده خو د الهي قانون د حکم له مخې د کفري ملکونو د اقتصادي بندیز د پاسه بندیز سره سره د اسلامي امارت د ١٤٢١ کال د فرمان په موجب بند او منع کړی شوه.

افغانستان او اسلامي امارت هغه مخکښ لومړنی اسلامي خلافت دی چې د اسلامي حکمونو د تحقق په لار کې یې د کوکنارو کرکیلې او د هغو د مشتقاتو راکړې ورکړې ته د پای ټکی کیښود. باید ووایو د آسیایي ملکو لکه: برما، ایران، تایلند او ...... ملکونه اوس هم د دغه بوټي په کرکیله لګیا او اروپایي ملکونه یې ستر پیرودونکي دي.

ترمنځ

٦ – په ١٤٢٢ کال، هندوانو ته د یونیفورم په ټاکلو د هندو مسلم د توپیر او تمیز رامینځته کولو اسلامي امارت داسي ګام اوچت کړ، چې نه یوازې د هندو مسلم په یوه چاپیریال کې د اوسیدو نیته لیک یې ساری نلری بلکې دا یو داسي په ځای عمل او نوښت دی چې بریای مسلمانانو ته عموماً او افغانانو ته به خاصه توګه د ژوند د بیې اهمیت لری.

ځکه له اهل هنود سره په افغانستان کې له کلو کلو راهیسې داسي چلند شوی چې څوک یې له ورور سره هم نشي کولای. د ساری په توګه:

- په پوځ کی د هندوانو د تش په نامه پوځی ذمه واریو په درناوی د وخت چارواکی په اسلامی سننو په پښو اینښودو د مسلمان عالم ډیره کتهوله اود هندوانو د عقیدی د درناوی له مخی یی له هغوی سره د غه عمل نه کاوه ، هندوانو تش په نامه عسکری موده په کوروکی او مسلمانانو په ولایاتو کی تیروله .

- هندوانو ته په پارلمان کی کرسی ورکړشوی وی او د مملکت په برخه لیک کی ئی د خبرو او رائی حق درلود .

- هندوان د هیواد شتمنه ډله او مسلمانان یی فقیره ډله وه . هندوان د ښار په ښه موقعیت او ښو پوریزه بنگلوکی اوسیدل ، مال ناموس یی په عزت کی و .

- د زاړه ښار دده افغانانو د پخوانی نخاس ، دجوی شیر په غاړه دجامع جومات څنگ کی د هندوانو مندر ، درمسال ته ځای ورکړ شوی چی ښه په عزت کی دی .

- د پروان د کارتی ، د باغ بالا په برید ، دو راهی په شمالی اړخ کی چی یوسرک خیرخانی او بل د پروان د مامورینو د کارتی په لوری مخ په لویدیز افشاروا و پولیتخنیک پوهنځی په بربد غزیدلی ، دیو جامع جومات ودانی په یو جریب ساحه کی د هندوانو د کورود درناوی په خاطر دا پنځه دیرش کاله ورانه ویجاړه پرته ده .

خو هلته چی گورو په هند کی هندوانو ٤٠٠ کاله وروسته بابری جامع او تاریخی جومات له هیواد نه دبهرنو هندوانو په چنده ونړاوه او په ځای یی د مسلمانانو له اقلیت نه په ناوړه استفاده مندر یاد رمسال ودان کړ .

- په افغانستان کی د هند په لسون میشتو هندوانو د کمونستانو د تیری په

وخت د شوروي سلاح په اوږه کړې او له مجاهدينو سره يې مخامخ جگړه کوله. اوس هم هندوستان له روسانو او روس پلو وسره د افغانانو په ضد ولاړ دی مالي او نوري هر ډول مرستي ورسره کوي.

۷- د اسلامي شريعت له حکمونو سره سم د افغانستان په نيټه ليک کې دا لومړی ځل دی چي کونډی ته د يو حقوقي شخصيت په سترگه کتل شوی او د عدت د مودې له پوره کيدو وروسته ورته حق ورکړ شوی چي که د بل ميړه يا خاوند خيال لري کولای نشي ځانته پخپله خوښه يې د چا د زور زياتی خاوند خوښ او د نوی ژوند پيوند د شرعي اصولو سره سم ورسره ولگوی. په دې نوښت اسلامي امارت په افغانستان کې د ښځی حقه حقوق پوره او هغه يي د ميراث له متروکې ونډې بې برخې نه پرېښوده (له) متروکې بېني وايستله

۸- له ۱۳۰۰ کالو راهيسې کله چي اسلامي نهضت د نننی افغانستان په ځمکه خپله پاکه لمن خپره کړې، اسلامي امارت د اسلام مبين دين د ربښتيانی خادم په حيث لومړنی اسلامي خلافت دی چي د شرک او شرک پالنی لمن يې له افغانستان مسلمان هيواد څخه ټوله او د مشرکانو تر ملا ور وتړله. دا د باميانو او داسې نورو سيمو د شرک ننگين تمثالونه يې چي کفری دنيايی تاريخي مفاخر او د اسلام مبين دين ئې شرک او شرک پرستی بولې له مينځه يووړل. د امارت دغه نوښت په واقع کې مرهتيه ته د احمد شاه بابا د ماتی، د محمود غزنوی د سومنات د ماتولو او ميرويس خان د ارمنی گرگين او د هغه دور سره لس زره لښکر ځای په ځای له توری تيرولو يا د تازه او ارواوی ئې ښادی کړې چي ملت ئې د غه لوړ همت او نيک عمل ستايی آفرين ورته وايي ملاتړيې کوي. والله خيـــرا حـــافظـــا.

# بسم الله الرحمن الرحيم

## ۱ بخښنه او منــنــه

زه ددې کتاب په لیکلو او خپرولو کې، یوازې او یوازې، دخپل خدای (ج) د فضل او کرم منت باریم. چې پدې مهال - داسې مهال، چې نه مې عمر - نه مې د پړی د رئیسه غړو متره په ځای بریښی، او نه مې اقتصادی شرایط سم دی، توفیق راوباښه، چې « د افغانستان نن - پرون » کتاب، هغه چې زما د فکری، هنری ذوق او عقیدی ژوند په کی، پیل او تر اوسه پائی، په څرنګوالی، دخپلې پوهې او عقیدی په میچ او کچ، د قلم ژبه وځغلوم.

زه نه وایم، چې زما دغه زیار به بې عیبه وی، ځکه دا یوازی د الله تعالی پاک ذات او چاری دی، چې عیب نلری، نور هر څه عیبجن او په هر چا کی، څه نا څه زیان او کمی شته، چې هیله ده، ما او زما دغه کار ته هم د مهربانۍ له مخې په دغسی سترګه وکتل شی. په نقص او کمی می پرده واچوی، او ماته ئی د سمښت لپاره، په مناسب فرصت کی راواوروی. خو دا هم په ډاګه وایم کومه متاع چې ما په دې دوکان کې راټوله کړی، تر اوسه لا ددې بازار دکانو ته، د پلورلو لپاره نده را رسیدلی او پیرودونکی ئی ډیر لږ دی. دا ډیر نوی شیان دی او ښه شیان دی خو ماته په لوړه بیه تمام شوی، لکه څنګه چې وختونه بدلیږی، کلتورونو کې ښه نوښت راځی او رغول کیږی، دغه راز کورونه، جامی، خواړه او ورسره ورسره لوښی او ظروف هم بدلیږی او بیه هم لوړیږی، دغسې ناروغی او دهغو لپاره دوا درمل هم نوی کیږی او څوک زړه دوا نه کاروی. زړو دواګانو ډیر ناروغان وژلی، له الله (ج) او له انبیاوو او اسمانی کتابو پرته نور په هر شی کې

